د لوي څښتن په نامه

# د پښتو حالتونه

په پښتو کي حالتونه پوره غزېدلی او روښانه شوې

دویمه خپرونه

لیکونکی: ډاکتر ماخان میرې شینواری

خپروونکی: انجنیر شمشاد زهیر

Ketabton.com



نېټه: ۲۰۲ ز کـ
بن- جرمني

# نیولیک

سریزه

-- د پښتو معیاریکونې او سمون دنده د پښتو پوهانو او د ژبې د پوهنیز کادر ده، نو که چېرې دا دما غوندې لیونی هم دې کار ته راوهڅېده، نو خبرو او لیکنو ته یې پاملرنه داسې ببځایه نه راته برېښي، خو بیا هم د سمون لپاره یې پوهنیز کادرونه باید جوګه وي.

-- دا د حالتونو ځېړنه لکه چې ما کړې او په داسې غزېدلې توګه ورته اړیین شوی یم، په پښتو کې لومړنۍ ده، نو له دې امله ستاسو پوره پام ورته را اړوم.

تکرار لري، خو مرسته کوي.

-- لاس ته راوړنه به یې په دې کتاب کې ولولو.

-- د ما لیکنو له یوې څخه وبلې ته وده کړې او په هره لیکنه کې یو څه پرې ور زیات شوي دي.

-- دا چې ما یو لیک د پوهنتون د پښتو څانګې ته لیکلی، باور وکړئ د نادرنښت یا ځانستاینې له امله نه دئ، خو په خبرو کې ورسره راتګ ستونځمن وو او دا مې و ځان ته یوه لار پرانستله، هیله ده سر به ونیسي.

-- د ما د لیکلو په پیل کې به ځنې اړیینې پښتو پوهنیزې کلمې راشي، چې پسې به حالتونه داسې لنډ راوړو، چې د ښوونځي لپاره هم باید همدا وي. د مانورې لیکنې د خپلواکه لیکنې په بڼه او توګه د ما د اړتیا سره سمې لیکلې شوي او همهغسې مې دلته راوړي، داسې د کتاب په ځېړ مې نظم په کې نه دئ راوستی.

-- که رښتیا ووایم، زه نور ورسره ستړی هم یم، باور وکړئ، چې څومره ډېر یې ګورم همغومره را څخه ناسمیږي هم. ماته خو دا لیکنه د ژبلار په لار کې یوه وده او نوې میندنې برېښي، او که تاسو ګرانو لوستونکو ته غوره وبرېښېده، هغه به بیا پخپله ستاسو د مینې سره سمې کړئ.

# د حالتونو و روښانونو ته د مخه غوره پېلیادونې:

له تکرار سره مه تنګیږي!

۱ – نومځاینیوي: په انګریزي او الملاني د نومځانیوو بڼه بدلیږي او د بڼه بدلېدنې سره یو حالت په ګوته کوي، په پښتو کې بڼه بدلېدنه نه شته، خو د دې پرځای باندې د کړونې نومځاینیوي سره یا حالت بدلون سره د ،،ما،، ومخ ته یو اړونده مورفیم ورزیاتیږي، چې هغه د ،، ما ،، سره یوه د هغه حالت نومځاینیوی جوړوي یا د هغه پوهېدنه بدلون یا د هغې پوهېدنه د حالت اړوند بدلوي یا له حالت سره برابروي. پسې راځي. ښایي اړتیا ورتهنه وي وروسته راغلي.

که نومونه یو له بل سره یو ګډوله نوم جوړ کړې، نو دا یو یې مختړی او دا بل یې پسې – یاو وروستړی دی، خو دا سې څه په مختړي کې نه ګورم، لکه وروستړو کې، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري، خو د ورسره راغلي خوی یا نوم یا له بل کوم ویي سره د هغه پوهېدنه بدلوي

هغه ډېرې له پښتو سر د موږ ستونځې او که د پښتو ستونځې په حالتونو کې دي. پر حالتونو باندې مو خبرې کړي یا به دلته له دې څخه وروسته په وغوېږو. اوس یواځې داستونځې، چې ولې دې، دا لږ روښانه کوو

---

په نورو ژبو یا چې زه پرې پوهېږم، الماني او انګریزي کې د کړنوییونو، خویوییونو او د نومځاینیو بڼه بدلیږي. په پښتو کې پرته له کړنوییونو د دې نورو دوه وو دنوموییونو او خویوییونو بڼه نه بدلیږي، نو باید پداپښتي داسې یو بل ژبنیز یا ژبلاریز څه وي، چې ځان د هغه حالت سره برابر کړي، چې ستونځې همدا پیدا کوي.

۱ – د کړنوییونو بڼه بدلیږي. لکه ځم، لاړم، خورم، خورې، ومې خوړ.

۲ – خویوییونه: لرو جګ، تور. دلته هم د نورو ژبو په څېر د دې جګېدنه وي، چې هغه پر ډېر، ډېر ښه، خورا، خورا ښه او زښت ډېر باندې کیږي.

۳ – د نومځاینیو لپاره هم باید ژبنیزې لارې وي، چې د هغو په مرسته نومو ییونه د حالت سره برابر شي.

په انګرېزي او الماني کښې د حالتونو اړوند، چې هغه یې حالتټاکونکي دي، د نومځاینیوو بدلېدنه یا بڼه بدلېدنه او که غواړې ګردان داسې دی:

I, me; may und deutsch: Ich, mein, mir, mich

و دې ته به په حالتڅېړنو کې فکر وکړو، چې دا نومو ییونو بڼه بدلون یا په پښتو کښې یې هغه انډول هم په حالتونو کښې څنګه راځي.

نومځاینیوي لنډ: موږ په پښتو کې د حالت سره له دوه نومځاینیوو څخه د ،، ما، تا ... او نور نومځانییوي لرو، چې له هغې سره یو څه ورزیاتو، چې هغه د حالت اړونده نومځای نیوي یا د نومځاینییو د حالت جوړونه راکوي او دا دي، خو لومړی

د مورفیمونو پېژند، چې نومځایمنیوو ته حالت اړونده پوهېدنه ورکوي:

دا مورفېمونه دي، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري او د نومو ییونو سره یوځای د هغوي پوهېدنه د حالت سره اړوند بدلوي. د خاوندوالي لپاره دا مورفېم ،،د،، دی او د داتیو یا د پسېځاینیو حالت دی، چې هغوي سره مورفېمونه، چې دا هم خپلواکه پوهېدنه نه لرې او دې حالت سره د نومځاینیوو دنده جوړوي او دا دي: له، په، پر، تر، و دما فکر ته نور نه راځي، ګران لوستونکي دې ورته فکر وکړي.

هغه ژبنیز توکي یا وییونه چې د حالتونو لپاره خوراغوره یا بنسټیز دي، هغه پسېځاینیوي دي:

۱ – د خاوندوالي حالت لپاره دا دي: لپاره ، لخوا. و ماته نور دما وفکر ته نه راِځي، خو که په دې حالت کې له ،، د ما،، پسې نوم یا نومځاینییوي را شي، نو بیا پسېځاینیوي نه شته.

۲ – د داتیو یا د پسبځاینیوو حالت لپاره: څخه، سره،کره، پسې، ته ، کښې، باندې، پورې.

## نومځاینیوي:

مور په پښتو کښې زه،ما، ته، تا او هغه، هغه او نور لرو، چې دا یواځې له ګرنوییونو څخه روښانه کېدی شي، چې ګرونی دی او که پرپګرونی.

که ولرو: ،، ما کور ،،، خو له دې څخه څه نه پو هېږو، ځکه ما ګرونی دی او دلته د کور سره څه نه کیږي، نو که له پیداښت څخه راسره مل ،، د ،، له ،،ما،، څخه د مخه ورزيات شي، نو دا به،، د ما کور،، شي. له دې امله ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم بلل کیږي او دا د نه ګروني یو حالت روښانه کوي.

که و ګورو ،، له ما څخه،، ، نو دلته درې وییونه لرو: له، ما او څخه.

،،ما،، خو ګرونی دی او دلته څه نه ګړل کیږي، دا په دې پو هېدنه، چې دا ،، ما ،، د اړونده له نه ګرونی حالت سره باید سر وخوري.

دلته نو څه کیږي؟

دلته دا ،، له ،، چې ورسره مل شوی او دا ناخپلواک مورفېم دی اودنده یې دا ده، چې د بل ورسره مل ويي پو هېدنه بدلوي، چې دا ،، ما ،، د ګروني حالت څخه د ،، له ما،، سره ونه ګروني حالت ته لاربښودوي، نو ،،له ما،، د نومځاینیوي پو هېدنبدلون دی، چې ،، له ما څخه،، کیږي او څخه خو پو هېږو، چې پسبځاینیوی یا پوستپوزېشن دی.

دا نور، په، پر، و ، تر هم همداسې مورفېمونه دي، بې له خپلواکه پو هېدنې سره او د ،، ما ،، پو هېدنبدلون له امله، لکه پورته. دا پورته ټول پرته له ،، د ،، څخه ټول د داتیو حالت یا د پسبځاینیوو حالت اړونده مورفېموه دي.

د دې لپاره چې په حالتونو ښه پوهېږو، باید له هر څه لومړی نومویونه وپېژنو او سمه کارونه یې، اړونده مورفیمونه په پام کې ولرو او بیا پسېځاینیوو باندې پوه وو یا مو ورته پام وي.

مونږ په پښتو کې حالتونه په درې ډوله روښانه کولی شو، چې د کوم ناسمون سره نه مخامخ کېږو.

د پښتو حالتونو روښانولو او په بنسټ یې د حالتونو پېژند لپاره غوره کلیتیکي یا تکیه اړنومځاینیوي هم دي.

مختکیه- اړ- یا و مخ ته تکیه - اړ نومځانیوي: را، در، ور او

پسېتکیه – اړ نومځاینیوي: مې، دې، یې، مو

حالت: بې له حالت څخه غونډلې ناپوهوړ دي او همداسې بې د توکو یا له اړوند نومځاینیو پوهېدنبدلون څخه هم غونډلې مو ناسمې پوهېدنې ته لاربښودوي. دا به همهلته ښه روښانه شي.

دا د پښتو حالتونه د یوګونو غونډلغړو په منځ کې اړیکي روښانه کوي یا د غونډلو یوګونو غړو په منځ اړیکې ټینګوي.

وبه ګورو، چې حالتونه په پښتو کې داسې لړپېچلې دي، په ځانګړې توګه روښانونه یې.

په پښتو کې د حالتونو روښانونه:

مونږ د پښتو حالتونه په درې ډوله روښانه کولی شو:

حالت څه شی دی؟

حالت د نوم او نومځاینوو ګرامري واکوالی یا دنده ده او نومځانیوي د نور ویونو سره. په پښتو دوه یا په بله پوهېدنه څلور حالتونه دي. دې ته به هم همدلته ګوته ونیسم، چې دا مونږ په پښتو کې په درې ډوله روښانه کولی شو.

۱ – په سیده توګه.

۲ – د کلیتیکي نومځاینیوو په بنسټ

۳ – د کړوني او نه کړوني په بنسټ.

پسبځاینیو(شیویی): پسبځاینیو، چې اړیکویي هم ورته ویلکیږي، وییونه یو له بل سره په ټاکلواړیکو کې راولي( ځاییز، وختیز او ورته). باندې، کره، پسې، سره

## په پښتو کې حالتونه

د حالت پېژند:

پیل یادونه ۱: د حالتونو غوره والی: د مورڼ دېږي ستونځې او د ناسم لیکلو ستونځې د حالتونو په نه پېژندلو کې دي. تر هغې پورې، چې دا حالتونه ژبې او همداسې ښوونځیو ته نه وي ننوتلي، دا ستونځې مو نه اوبی کیږي. دا تراوسه نه وو میندل شوي او اوس مې دېږې لیکنې ورباندې کړي.

پیل یادونه ۲ : پښتو خو د یوګنو اوس حالت لپاره دوه نومځاینیوي زه، ما، ته، تا او هغه، هغه او د دېرګڼو لپاره یو یو نومځاینیوي لري.

پښتو ژبه دوه حالتونه لري:

یادونه: دا دې په یاد ولرو، چې دا موضوع د کتاب په دننه کې غزولې روښانه شوې ده.

لومړی: کړونی حالت( لاتین یې رېکتوس): دا کړی شو نومیز حالت هم وبولو: په دې حالت کې یو څوک څه کوي.

بېلګې: زه ځم، زه خورم، تا راوړل. ته راغلې.

دویم: نه کړونی حالت یا اوبلیکوس: له نوم څخه یې برېښي، چې دلته څه نه کیږي. له دې به داسې وپوهیږو، چې کړونی نه دی.

دا حالت په درې ډوله دی یا درې برخې لري:

دویم ۱ : پرېکړونی حالت: په دې حالت کې په یوه څه څه کیږي.

بېلګه (په ډېر بخښنه، خو د ښه پوهېدلو لپاره به یې بېلګه دا وهل، ډبول راوړم): لکه: سپین یې وواهه. په دې حالت کې یو څوک یا څه وهل کې.

بېلګې: ته ووهل شوې. ته سپین ووهلې. یا: تا زه ووهلم. دلته،، تا،، کړنی دی او زه پرېکړونی یا نه کړونی دی.

دویم ۲ : د خاوندوالي حالت: په دې حالت کې یو څه یا څوک د یوڅه خاوند دی. ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم، خپلواکه پوهېدنه نه لرې او له نوم یانومځاینیوي سره هغه د کړونو نومځاینیوو پوهېدنه په نه کړونو بدلوي.

بېلګې: دما کور. د تا خولی. د هغه ځوي او نور.

یادونه: د تکیه اړ نومځاینیوو حالت کې بیا دا پخپله درې برخې لري، چې هلته به پام ورته شوی وي.

دویم ۳ : دا د الماني و دا تیو حالت ته ورته دی او ما د پسېځاینیوو حالت بللی، خو نوم ته یې پام باید په ګډه وشي:

یادونه: په پښتو کې د موږ ستونځې تولې یا هغه ډېرې یې په مدې حالت کې، چې پرې غږېدلي یو:

بېلګې:

۱ – له کور څخه. زه له کور څخه لاړم.

۲ – له کتاب سره. زه له کتاب سره راغلم.

۳ – له سپین کره. زه له سپین کره یم.

۴ – له تا پسې. زه له تا پسې روان یم.

۵ - تر کابل پورې. له کندهار څخه تر کابل پورې نږدې پنځه سوه کیلو متره لار ده. یا

له ننګرهار څخه تر کابل پورې.

دلته دا يادونه اړيينه بولم، چې تر يوائې ا و يوائې په همداسې ځای کې راتللی شي او په نورو ځايونو کې ناسم دی.

۶ – په کور کښې. زه نن په کور کښې يم.

۷ – پر مېز باندې. کتاب پر مېز باندې پروت دی.

۸ – پر ما پورې. پر ما پورې خټې نښتي.

يادونه: په ۵ – او ۸ – پورې راغلی، خو پوهېدنه يې سره بېله ده. په ۵ – دا يوه پوله ده او په ۸ – کې دا پر يو څه پورې څه نښتی.

۹ – و سپين ته. ما و سپين ته وويل.

د ما همدومره فکر ته راغلل، نور يې تاسو پيدا کړئ.

د دې د روښانه – ولو لپاره مې پوره کتاب يا کتابونه يا ډېرې ليکنې کړي، چې و هغو ته لاس رسی شته.

يوه پای يادونه: دلته: له، په، پر، تر او و يوائې او يوائې په همداسې ډول کارول کيږي او بل ډول کارونه يې ناسمه ده.

بله يادونه دې هم وي: د ما کتاب، له ما څخه، پرمېز باندې.... دا غونډلې يا جملې نه دي.

-- وينا: د وييونو موخه-ورڅنګ په څنګ کې ايښول دي، چې يو رښتياارزښت رېښتيا يا ناريښتيا ولري.

-- غونډله: هغه وينا ده، چې رښتيا ارزښت، ريښتيا يا نا ريښتيا يې بايد وښوول شي.

لکه: دا د ما کتاب دی. دا کتاب به يا ذدما وي او يا نه. دا بايد وښول شي.

هغه له ما څخه لاړ. ....

بيا: دا له ، پر او نور مورفېمونه دي چې خپلواکه پوهېدنه نه لري او د نوم يا نومځاينيوو سره، چې موږ يې کړوني حالت ګورو و نه کړوني حالت ته لارښودوي يا نه کړونی حالت ورڅخه جوړوي.

## حالتونه د تکیه اړنومځاینیو سره:

بیا: که د ( ډېرو) ناسمونونو مخه غواړو ونیسو، نو پر حالتونو باندې له پوهېدنو څخه پرته بله لار نه لرو.

د کلیتیکي یا تکیه اړ نومځاینیوو پرمرسته باندې یا له مخې څخه هم څلور حالتونه لرو:

پروکلیتیکي یا پسېتکیه اړ نومځاینیوي: مې، مو، دې، یې

اینکلیتیکي – یا مختکیه اړ نومځانیوي: را، در، ور

حالتونه:

لومړی: د پسې تکیه اړنومځاینیوو سره

لومړی ۱ – کړونی: سپین مې (مو، دې، یې) وهي.سپین کړونی

لومړی۲ – پرېکړونی: سپین مې ( مو، دې ، یې) وه واه. سپین پرېکړونی

لومړی ۳ – خاوندوالي حالت: سپین مې ( مو، دې، یې) ورور دی.

دویم: د مخه تکیه اړ نومځاینیوو سره

یادونه: دا چې په دې ټولو برخحالتونو کې د تکیه اړ نومځاینیو پسې یواځې پسېځاینیوي دي، نو ما دا حالت د پسېځاینیو حالت هم بللی او که غواړی، نو دا د نورو زبو داتیو حالت ته ورنږدې دی، داتیو حالت یې هم بللی شی.

د مخه تکیه اړ نومځاینیوي: را، در، ور

را(در، ور) څخه(سره، کره، پسې، کې، باندې، پورې، ته...)

که غواړئ، چې دا ښه روښانه شي، نو کړئ شئ د و مخ ته تيرې يا ښايې پسې لیکنې سره یې برتله کړئ. په دې ،،د حالتونو کتاب،، کې دا ډېر روښانه روښانه شوي دي.

د ښوونځي د نساب لپاره دا بسيا کوي.

دا وروسته لیکنې مې د اړتیاوو سره سمې کړې دي، چې د دې موضوع له ښه روښانونې سره مرسته کوي.

Klitikum = تکیه اړ نومځاینیوي:

پیل یادونه: تر هغې پورې، چې ما و ځان ته روښانه کړه، دا لیکنه یا همهغه د مادا ډول لیکنې په پښتو کې تراوسه پورې یواځنۍ دي، چې له دې امله به ستونځې ولري. دا لیکو او په خبرو کې کاروو، خو ژبلاریزه لار سره یې بلد نه یو، نو پوره د خبرو او د پام وړ راته برېښي.

کلیتیکې ( له زړې یوناني ἐγκλιτικόν رابېل شوي تکیه شوی ویي) هغه ویي، چې کلیتیکون یا تکیه اړ ویي، په دې پوهېدنه، چې په یوه بل ویي باید تکیه وي ( دا خو هغه تولیز یا د نورو ژبو څخه رانیولی پېژند دی، دا کېدی شي په پښتو کې بل ډول راشي، چې فکر باید ورته وشي او دا چې زه ګورم، د پښتو دا کلیتیکي نومځاینیوي، چې د ما لخوا انډول داسې راوړل او بلل شوي، بل ډول دي هم، خو دا اوږد او په ګډه فکر غواړي، چې دا نه شته). هغه وییونه، چې تکیه پرې کوي بنسټ ویي بلل کیږي او پرته له دې څخه تکیه ویي یا مېلمه پال ویی دی. دا تړن ویي له تکیه اړ ویي سره یو نږدې غږیز یاموزیکي یووالی جوړوي، ډېر وخت phonologisches فونولوژیکي ویي دی. په دې موخه تکیه اړ وییونه خپلواک او ازاد وییونه نه دي او د خپلواک وییونو او افېکسونو ( مختړو؟؟ ) په منځ کې ځانګړی ځای نیسي. یو لړ کریتیرین شته، چې افیکسونه له تکیه اړ وییونو څخه توپیروي، کېدی شي افیکسونه په ښه جوړونه کې نامنظموالی راولي او په تکیه اړ وییونو کې په تولیزه توګه بنسټویي کې بدلون نه راځي.

-- (دا برخه په څېړلو کې داسې پېچلې برېښي، چې کېدی شي د پښتو او الماني څېړنې سره توپیر ولري، خو زه به هغه زه ورڅخه پوه شوې لیکنه له تاسو سره شریکه کړم، چې پوره کونه یې بیا راتلونکي ژبپوهان په غاړه باید واخستلی شي.)

- -- په هره برخه کې بېلګې هم نه شته، ځکه چې پرته له تکیه اړ وییونو څخه داسې روښانه دا افیکس آو .... ښه نه پیژنم، خو پېژند مې یې در سره سم ګډ کړی دی

بیا: کلیتیکي یا تکیه اړ نومځاینیوي لرو:

تکیه اړ نور هم د هغوي د بنسټونو د ډول له مخې څخه توپیریږي. هغوي سینټاکټیکي ( د غونډلو او غونډلو جوړونو اړوند، د غونډلپوهنې اړوند ) ټاکلي یا په یوه مورفولوژیکي کاټېګوري کې رابند وي.

موږ دوه ډوله تکیه اړ ویونه یا نومځاینیوي پېژنو:

۱ – Proklitika هغه وییونه یا ښه یې نومځاینیوي دی، چې پسې راتلونکي ویې باندې تکیه کوي.

۲ – Enklitika هغه نومځاینیوي دي، چې ځانونه د مخه تلونکو وییونو پسې تکیه کوي د مخه تکیه اړنومځاینیوی(pro- klitisch ): یو ( د مخه تکیه وي) پسې تلونې ویی پورې داسې تکیه وي، چې یوځای یو ویې جوړ کړي.

دا نومځاینیوي ټول درې دي: را، در ، ور.
یادونه: زه چې دا وییونه په ن ج کې ګورم، نو د هغه څه سره چې زه یې له الماني لولم، پوره توپیر لري، چې دا همداسې باید وي هم.

یوه اړیینه یادونه: ما دلته د دې نومونو لاندې څېړلي، کېدی شي په نورو ژبو کې، چې داسې خوی ولري، په هغو کې ښه روښانه شوی وي، خو زه نه پرېپوهېږم. هرڅنګه چې وي، دا څېړلي، چې د هر نامه لاندې وي، ژبنیزه ستونځه په کې نه شته. که دا نومیزه ستونځه بل ډول چا بللې وي یا بولي، له هغې څخه زه خبر نه یم او هیله ده، چې راسره ګډ به یې کړئ.
همداسې: دا په پښتو کې لږ د پوښتنې دی، چې له بنسټ ویې سره یوځای یو ویې جوړوي او که څنګه؟

بېلګې یې: را څخه او که راڅخه، را پسې او که راپسې، را سره او که راسره. دلته، چې له پسځاینیو د مخه راځې، خو سره بېل لیکل کیږي
یادونه: ګورو چې، که د کړنوییونه سره راشي، خو ورسره سرېښ دي او که د پسځاینیوو سره وي، نو بیا سره بېل لیکل کیږي.

د دې نومځاینیو کارونه هم ژبپوهنبز په دوه ډوله وییونو یا تکیه وییونو سره راځي، چې بېل او ګډ لیکلو کې دې هم پام ورته وشي.

۱۱ – د کړوني یا رېکتوس حالت کې

۱۲ – په نه کړوني یا اوبلیکوس حالت کې او هلته هم یواځې د پسېځاینیو د مخه تکیه اړ نومځاینیوي دي.

و ۱ ۱ – ته: موږ کړنوییونه لرو، چې په هغو کې پرېکړونی نه شته، لکه: تلل. داسې ویونه لوریز کړنوییونه هم بللکیږي او دارا، در، ور هم د همدې وییونو سره راځي. دا را،در، ور. له دې کړنوییونو سره ګډ یو ویي جوړوي. موږ وایو: تلل، راتلل،ورتلل. درتلل.

که د دې سره موږ یوه کړوني غونډله جوړوو، نو وایوو: زه درځم، ته راځې او هغه ورځي او همداسې زه ځم، ته ځې او نور.

دلته ګوره د ځانیز نومځاینیوي سره دا را،در، ور هم د هغه کړنویي ،، تلل سره راځي.

دا د هغه مې، دې، یې په څېر لکه هلته د هغو لپاره ما، تا، هغه ... او نور راځي، خو په دې کې داسې نه ده، نو څنګه فکر باید دلته وشي؟

که ولرو: راځي. پوښتنه: څوک راځي؟ ځوابه: زه، (هغه، ته... ) راځم (راځې، راځي،...)

دلته ګورو، چې د پوښتنو په ځوابولو کې دا کړننوموویونه ورسره مل دي. داسې برېښي، چې د ځم او ... سره دا را، در، ور بیا نهبېلېدونکي تړلي، دا په دې پوهېدنه، چې د هغو برخه ده.

و ۱ ۲ – ته: دلته دا را، در، ور یواځې د پسېځاینیوو سره راځي. دا چې دا هم ګډ یا بېل لیکل کیږي، د پام وړ دي. موږ لرو: را(در، ور) سره ( څخه، کره، پورې کې او نور)

دا بې له دې اینکلیتیکي نومځاینیوو داسې لیکو: له ما (له تا، له هغه...) سره(څخه، کره، پسې) ، په ما ( په تا، په هغه...) کې، پرما(پرتا، پر هغه) باندې(پورې)، وما(وتا، وهغه، ..) ته. که نور وي، نو ګران لوستونکي دې ورته پام وکړي.

یادونه: دا څه چې موږ داسې بولو یا ایې د الماني په مرسته يې داسې رااخلم، په الماني کې یا نه شته او یا داسې نه دي، بېلګې یې اړیینې نه بولم.

اینکلیتیکي یا پسې تکیه اړ نومځاینیوي:

پسې تکیه نومځاینیوي یوه شیدنده لري، که هغه په یوه کړنویي پسې ورزیات شي. زیات وخت په خبریزه ژبه کې یا په شعرونو کې ومخ ته راځي او په لکنیزه ژبه کې بیا ډېر یا نه لیکل کیږي.

دا نومځای نیوي دا لاندې څلور دي.

،، مې، مو، دې ، یې،،.

یوه پیل یادونه: موږ لرو: ا - کتاب مې واخست. ب – کتاب مې سپین دی.

ګورو: په ا – کې: په غونډله کې ،،مې،، کړونی دی، نو له دې امله ،، ما ،، او په ب – کې ،، مې ،، نه کړونی دی، نو له دې امله د اړونده حالت سره سم د هغه حالت یو مورفېم ، چې په دې غونډله کې ،، د ،، دی د ،، ما ،، سره ور زیات شي، نو له دې امله د ،، مې ،، په،، د ما،، راځي. ګوری، چې پښتو ژبه د ژبلار له مخې څومره له یوه څه څخه دوه ډوله پوهېدنې لري، چې دا ،، مې ،، یوه غونډله کې ،، ما ،، او په بله کې کې ،، د ما،، دي.

یادونه: د موږ د بلدتیا له مخې موږ دا ،، د ،، د ،، ما ،، سره یوځای لیکو، خو دا د یو مورفېم دی، چې د خاوندوالي په حالت کې ځانله باید ولیکل شي.

داسې به ومخ ته لاړ شو، چې

۱ - لومړی به درې غونډلې راوړو، یوائې د یوه کړوني سره او بیا به د دې په مټه پېژند ورکړو.

خبره په څوک او چا کې هم ده

۱۱ - کتاب مې واخست.

چا کتاب واخستۍ؟

ما کتاب واخست. له دې لاس ته راځي

ما کتاب واخست = کتاب مې واخست

۲۱ – کتاب اخلم ( که پام وکړو، نو په دې روان حالت کې ،، کتاب اخلم،، تکیه اړ نومځاینیوی نه شته او و پوښتني ته، چې: څوک کتاب اخلي؟ زه کتاب اخلم، نو د دې لاس ته راوړنه به دا وي، چې دا غونډله ،، کتاب اخلم،، په خپله خته کې سمه یا پوره نه ده او دلته باید تل ورسره ،، زه،، وي، په دې پوهېدنه چې اړوند کړونی باید ورسره وي. څوک کتاب اخلي؟ زه کتاب اخلم.)

اړیېنه یادونه: دا نومځاینیوي، د هغه کړنوییونو لپاره راځي، چې پرېکړونی ولري......

یادونه: ډېر ښه راځي، چې دا غونډلې د پوښتنغونډلو له لارې روښانه شي او داسې سمې هم راځي.

څوک کتاب اخلي؟

زه کتاب اخلم = کتاب اخلم

چا کتاب واخست؟

ما کتاب واخست= کتاب مې واخست

۳۱ – کتاب دې اخلم

د تا کتاب اخلم

څوک د چا کتاب اخلي؟

زه د تا کتاب اخلم.

۲ - په دې حالت کې به هم وګورو، چې څو غونډلې ليکلی شو اودا څنګه؟

۲ ۱ – کتاب مې سپين دی

د چا کتاب سپين دی؟

د ما کتاب سپين دی. له دې څخه و لاس ته راځي، چې:

د ما کتاب سپين دی = کتاب مې سپين دی

له دې پورته راوړنو څخه داسې برېښي، چې دا پسې تکيه اړ نومځاينيوي دا دندې لري.

په ۱ - کې مې، مو، دې، يې د کړنوييونو سره کړوني يا رېکتوس دي او

په ۲ - کې خويوييونو سره نه کړوني دي يا دا د خاوندوالي حالت دی.

راځی، چې د دې لپاره لږ تر لږه دا يوه غونډله راوړو او بيايې اړونده پوښتنه پوښتنغونډله راوړو او با د دې پوښتنغونډلې ځواب په همغه تېرې موخې ورکړو. پام ورته کوو:

لرو: کتاب مې يې راووړ.

پوښتنه: چا د چا څه شی راووړ:

ځواب: هغه دما کتاب راووړ.

ګوره چې دا ځواب په همغه موخې دی، خو د همهغو تکيه اړ نومځاينيوو سره نه.

دا ګوره يوه په زړه پورې موضوع ده، چې بايد پام ورته رااوښتی وي.

ډاکتر ماخان مېرزی شينواری

# د حالتونو نوی څېړنپوهه

بيا ژبلاريزه نوې څېړن-اند يا څېړنپوهه:

پښتو د ژبلارې له مخې څخه هم يوه هکپککونکې ژبلاريزه او نه (پوره) يا ښه يې ژبلاريزه کمه څېړل شوې ژبه ده.

نن د ۲۰۲۲ زکی دسپتمبر ۲۶ د سهار یاشپې ۴ بجې. فکر مې ټول د پښتو په ژبلار کې دی او په ژبلار کې دې څېړن اند ( د څېړنې په بنسټ اند ته) ته ورسېدم:

پښتو یوه ډېر ښه روښانه ژبلار لري.دا چې ژبلار په ژبو کې د ژبې د جوړښت شته لارې څېړي، نو زه تل له یوه اند څخه وبل ته ځم او د نوې څېړنپوهې سره مخامخ کېږم، چې هغه له تاسو درنو لوستونکو سره یې ګډوم.

په پښتو چې زه تراوسه پورې له پښتنو څخه لیکل شوي ژبلار سره داسې لږ بلدتیا لرم او د پښتو ژبلار د ترتیب لپاره مې زیات د ژبلار لپاره الماني ادبیات کارولی او بیا هغه، چې د دباندنیو له خوا لیکل شوی، نو هرو مرو د زیات فکر وړ دي، ځکه چې د ټولو ژبو ژبلارې ډېر توپیر سره لري، چې یو له بل څخه ګټه اخستلکېدی شي، خو ورته والی به ونه لري یا ډېر کم.

زه چې د ما په څېړنو کې تر اوسه پورې وپوهېدم، هغه دا ده، چې موږ په حالتونو کې ډېرې ستونځې لرو، چې په هکله یې ما هم ډېرې لیکنې کړې او دا هم تل د تېرو لیکنو په بشپړېدو.

اوس خپلې دې راته پیدا موخې اند ته، چې کړی شو د پښتو ژبلار د دوه حالتونو کړونی او نه کړوني په ځای په څلورو حالتونو ووېشو او یا په دوه حالتونو داسې چې دا نه کړونی حالت بیا درې برخې ولري. دا به نو ګران لوستونکي او هیله ده ژبپوهان په ګډه سره برابر کړی شو.

د پښتو حالتونه لنډ بې له ډېرې شننې:

لومړی – کړونی : نوموبونه (نومونه او نومځاینیوي): زه، ما، ته ، تا، هغه، هغه او نور، چې د نورو راوړلو ته بیا اړتیا هم نه وي. (۱)

بېلګې:

لومړی ۱ - زه مړۍ خورم. ما مړۍ وخوړه.

لومړی ۲ – ته مړۍ خورې. تا مړۍ وخوړه.

لومړی ۳ – هغه مړی خوري. هغه مړی و خوړه. او داسې نور هم....

دویم: پرېکړونی: هغه نومونه یا نومځاینیوي دي، چې څه پرې کیږي، لکه: ما، زه، تا، ته، هغه، هغه او نور. دلته هم همدا بسیا کوي.

یادونه: د کړوني او پرېکړوني په منځکې دا توپیر دی، کله چې کړونی په زه پیل شي، نو پرېکړونی یې ما دی او په څټ، چې کړونی ما وي، نو پرېکړونی زه دی.

بېلګې: دویم ۱ - ته (ما، هغه) وهې. تا زه ووهلم. تا هغه وواهه

دویم ۲ - هغه (ما، تا) وهي. هغه زه ووهلم ( - ته ووهلې).

ګومان مې دی، دابه بسیا وکړي.

یادونه: په نورو حالتونو کې د زه، ته، هغه.....

دریم: د خاوندوالي حالت: د خاوندوالي لپاره د نومویونو(نومونو، نومځاینیوو) سره د خانوندوالي مورفیم ،، د ،، د مخه راخي.

بېلګه: دما( دتا، د هغه) کتاب.

څلورم: د پسېځاینیوو حالت:

بېلګې:

څلورم ۱ – له ما ( څخه، سره، کره...)

څولورم ۲ – پرمیز (باندې، پورې، پسې)

پنځم ۳ – په ما کې.

څلورم ۴- و ما ته.

څلورم ۵ – تر ماپورې. او نور.....

په څلورم کې څخه، سره،.. کې،باندې، پورې، ته ... پسبځاینیوي دي او، له، تر، په، پر، و ...د پسبځاینیوو اړونده مورفېمونه دي.

ګورو، چې دلته د نوموېونو د مخه د بېلا بېلو پسبځاینیوو اړونده مورفیومونه راځي، نو له دې امله دا د پسبځاینیوو حالت بللی شو.

څنګه کړی شو دا وښایو؟

د تکیه اړ نومځاینیوو په بنسټ

۱ - پسي تکیه اړ: مې، مو، دې، یې: دا پسې تکیه اړ نومځاینیوي د یوه نوموي پسې راځي

۲ - د مخه تکیه اړ: را، در، ور : دا د مخه تکیه اړ نومځاینیوي د یوه پسبځاینیوي او یواځې د پسبځاینیوي د مخه راځي، نو له دې امله د پسبځاینیوي حالت یې بولم.

و ۱ ته-

و ۱ ته - دا پسې تکیه اړ یا اینکلیتیکي نومځاینیوي دوه ځایونو کې کارول کیږي،

۱۱- دانومځاینیوي، چې نوموېونو پسې راځی، که د مخه نومځاینیوی یې د پرېکړوني په حالت کې وي، نو پخپله دا پسې نومځاینیوي یې کړونی دی.

بېلګه: کتاب مې واخسته. دلته کتاب پرېکړونی دی او مې کړونی.

۱ ۲ – که د دې نومځاینیوي د مخه نوموی د دې نومځاینیوي پسې د یوه خوي سره سنبال وي، نو دا د خاوندوالي حالت دی.

کتاب مې سره پوښونه لري.

و ۲ ته –

۲ ۱ – دا نومځاینیوي که د کړنوي د مخه راشي، نو دا لوریز کړنویونه دي، چې و مور ته د دې اوس موخې له امله دا همدومره بسیا کوی.

۲ ۲ – که دا نومځاینیوي د پسېځاینیوي د مخه راشي، نو دا له دې امله د پسېځاینیوو حالت دی او لرو: (را، در، ور) ( څخه، سره، کره، پورې، باندې، کې،...).

ګورو دا دلته یواځې له پسېځاینیوو څخه د مخه راځي.

که غواړئ داسې هم کېدی شي، چې ووایو:

پښتو دوه حالتونه رېکتوس او اوبلیکو یا کړونی او نه کړوني حالتونه، چې دا لومړی یې کړونی او پسې درې یې نه کړوني حالتونه وبولو. دنورې روښانتیا لپاره پوره لیکنې په کتاب کې شته.

له دې سره مو هغه اړین څه وښوول، خو اوس اندونه، ګوتنیونې، سمونونه او وړاندیزونه سره ګډ کړو.

ما د دې لیکنې سره - داسې اندم- چې د ټولو له ما څخه د حالتونو په هکله لیکنو ته پایټکی (د پای ټکی) کښېښود. تاسو ټول دې راته بریالي وی.

# په پښتو کې له وییونو څخه تېرېدنه نه شته

په پښتو غونډلو کې له وییونو څخه تېرېدل یا حذف(؟؟) ژبلاریز نه دي.

د مور ډېر یا ټول ژبپوهان او ژبمینه وال په دې اند دي، چې ګوندې پښتو کې د ځنو وییونو ویلو او لیکلو ته اړتیا نه شته او کېدی شي ورڅخه تېر شو ( حذف ؟؟؟ ).

راځئ ، چې دې ته لږ فکر وکړو، چې په پښتو کې له وييونو تېريدى شو او که نه؟

--- د پيداښت پر بنسټ باندې يا - له لورې څخه: دا چې ژبه پيداښتي ده، نو له پيداښتي پيداښت څخه خو تېرېدل د پيداښت سره په مخامخوالي کې دى.

دپيداښت سره سم د پښتو وييونو څخه تېرېدل، نو له دې امله ناسم دي.

--- دې ته دې پام وي، چې ژبه د مشورو او ګوتپورته کونو له لارې نه ټاکل کيږي، ځکه چې پيداښت نه ټاکل کيږي، دا دي، چې څنګه دي. کله هم چې يو څه د مشورې له لارې شوي، ناسم شوي، نو ناسم او پوره ناسم شوى، چې بېلګې يې ډېرې دي، خو دوه به يې له تاسو سره شريکې کړم.

١ – ژبپوهانو غوښتل، چې ګوندې د عربي مايع لپاره به په پښتو کې څه نه وي، هغه ته يې اوبلن نوم وټاکه، چې اوس هم دموږ ليکولان يا له راديو- تلوېزيون د ښتېدوني يا غاز لپاره اوبلن واورم، پوره زورېږم او همداسې يې د ستاندارد، سويه او ستحې لپاره د کچې کارول، چې دا هم ناروا دى، کارول او د دوي ټاکل پوره ناسم دى. سرى له دې څخه داسې بايد وپوهيږي، چې دوي پر دې باندې نه پوهيږي. ما ته به ډېره بخښنه کوي، زه په رښتيا د خپلو پښتنو پوهانو ډېر درناوى کوم، خو دلته نو بل څه وليکم؟

هغه څه چې بهيږي، بهېدونکي دي. دا تل لرو اوستاندارد او سويه نه د کچونې څه لري، او له دې امله ورته نه کچون اله او له همدې امله نه کچيږي. دامې يوه ورځ له راديو څخه واورېدل، چې ،،په جلال اباد کې د کابل په کچه روغتون جوړ شو،، او سمه بده راته وبرېښېده.

ما چې ځېړنه په کې کړې، دا له وييونو څخه تېرېدلو ستونځې هم ټولې دپښتو په څلورم حالت کې دي، چې اوس به يې سره روښانه کړو.

د دې روښانونه هم ډېره ساده او د پيداښت په مټ پوره روښانه ده.

داسې به و مخ ته ولاړ شو او له پیل څخه به پردې اړونده غونډلو باندې پیل وکړ:

لومړی:

-- په ما باران ورېده.

-- ما باندې باران ورېده.

-- پر ما باران ورېد

-- پر ما باندې باران ورېده

دویم:

-- په کور یم او همداسې

-- کور یم.

-- کور کې یم.

-- په کور کښې یم

-- له کور لام.

-- د کور نه لاړم.

-- له کور څخه لاړم.

دابېلګې بسیا کوي.

ولې موږ په دې پوهېږو، چې موخه مو څه ده او ولې هغه موخه بې له ژبلارې له لارې سمه یا نیمګړې سمه برېښي؟

ور څخه تېرېدل یا حذفول ژبلار ده او که څنګه؟

ژبلار له ژبې څخه راوزي او نه ژبه له ژبلار څخه. دې ته مو تل باید پام وي.

-- ولې نو دا ستونځې تر اوسه پورې نه وې اوبې شوې؟

ژبه مو پنځه زره کلنه، خو دپوهنې ډګرته دا شاوخوا اویا کاله کیږي، راوتلې او دا هم داسې په نیمه نیمخوره توګه یا داسې په خوبېدا، چې پخپله پښتنو یې هم د څېړلو توان دومره نه لاره. په هر صورت د دې شرایطو لاندې اوس هم دموږ ژبې د موږ د ژبپوهانو په هلو ځلو او د ډېرو ربړو پر ګاللو باندې یې دومره د پام وړ وده کړې. په هغه وخت کې د موږ ژبپوهانو دومره امکانات هم نه لرل، چې پرته له عربي او په ځانګړې توګه فارسي، د نورو ژبو له ژبلار څخه کار واخستلی شي. د ژبلار لپاره خو له نورو ژبو څخه نور څه و لاس ته نه راځي، خو داپېژندونه باید سم راواخستل شي، چې هغه اوس کېدونکي دي.

که تاسو د موږ د پښتو ژبې ټولې د بېلا بېلو پوهنو پوهنیزې لیکنې وګورئ، نېمګړې نه، چې له ترنوییونو او اړیکوییونو څخه پرته پښتو په کې نه شته.

موږ د ژبې پر غنی کولو پسې ګرځو، خو د خپلو وییونو په ساتلو کې ناتوانه یو، چې دا د خپلو پښتو وییونو ساتل مو باید لومړنی دنده وي.

له ما څخه مې تل لیکنې اوړدیږي، خو لنډ داسې مخ ته ځو:

د موږ څلورم حالت مو د پسېځاينيو حالت بللی او ګورو چې ستونځې په همدې کې دي، نو غواړم لومړی تازه د پسېځاینیو پېژند راوړم.

پسېځاينيوي: د ښوونځي په ژبلاریزو ادبیاتو کې اړیکويونه یا پسي وییونه هم بلل کیږي، يو وييډول دی، چې یو رابند ټولګی جوړوي او د منځپانګ وي او په ګرامري نښونو کې ځاینیوی شوی. پسېځاينيوي په قانونمندئ کې د یوه نوموییونو ګروپ یا ډله غواړي او له دې سره یو حالت لیدوړ په نخښه کوي. دا چې پر نومویینو پسې ځای نیوی راځي، له همدې امله پسېځاینیوی هم بلل کیږي او

دا یوه ډله ده، چې ځایيز، وختيز، څنګه والي، راتلونکی، سره له دې، اړيینوالی پوهېدنې لېږدوي یا وړي او په پښتو او نور ژبو کې بڼه بدلېدونکي نه دي.

د دې لپاره چې دا غوره موضوع بریالۍ و مخ ته بوزو، اړيینه بولم دا د یوه لښتکي له لارڅخه روښانه کړم:

| ۱ – نومویيونه | ۲ - حالت د اړوند مورفیم سره نومویيونه | ۳اینکلی- تیکي نومویون | ۴ – پسېځاینیوي | ۵ – اړونده غونډلي او پروت لښتکی |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| زه ، هغه | له ما، له تا، له هغه... | را،در، ور | څخه،سره ،کره | ځم، ځي ۱ |
| سپین | په کور | --=-- | کې | دی ۲ |
| کتاب | پر مېز | را،در، ور | باندې، پورې | ایښي ۳ |
| ما | و سپین | را، در، ور | ته | وویل ۴ |
| ته | تر کور | را ... | پورې | لاړې ۵ |

یادونې ۱: له ما څخه هرو مرو کېدی شي ډېر پسېځاینیوي پاتې وي، خو هغه ستاسو دنده ده. لار روښانه ده.

یادونه ۲

-- که ولړو ( ا ، ب ) نو ا ولاړ لښتکی ورکوي او ب پروت لښتکی

-- (۳ –،۱ ) او (۴ –، ۱ ) داسې هم لیکلی شو: (را، در، ور) ( څخه، سره، کره،کې باندې، ته، پورې او نور؟)

روښانونه:

د ښه روښانې یا رڼې روښانونې لپاره داسې و مخ ته ځو:

یو: (۳ –،۱) او (۴ –،۱) داسې د (۵ –،۱ ) غونډله جوړوي، چې د (۴ –، ۱) له یوه پسېځاینیوي څخه نه شو تېرېدلی (حذف)

دوه: د ۳ – په مرسته مو د مخه لیکنو کې ۲ – روښانه کړي وو او له دې لارې

درې: له (۴ –،۱ ) څخه (۲ –،۱ ) تیک یا سیده لاس ته راځي. په دې پوهېدنه، چې که په (۴ –،۱ ) کې هر پسېځاینیوي ولرو، سملاسې ورڅخه همهغه د اړوند مورفېم سره یوځای په ( ۲ –،۱ ) کې نوموییونه راکوي.

--- که دا د حالت اړونده مورفېمونه او دا اړونده نوموویونه یوځای حالت اړونده نوموییونه وبولو، خو ګومان مې دی، کومه تېروتنه یا ناسمون به ځان پسې ونه لري.

څلور: همداسې که له دوه کوم د اړونده مورفېم سره اړونده نوموی ولرو، نو سملاسې پوهېږو، چې

د ۴ – کوم پسېځاینیوي یې اړوند دی.

--که ولرو( ۴ -، ۳) نو دلته ور څخه ،،باندې،، او هداسې ،، پورې،، پوهېږو.

نو که پسېځاینیوی (۴ -،۵) ولرو اړونده نوموی د اړونده مورفیم سره ( ۲ - ۵، ).

که ولر ( ۲ -، ۳ )، نو سملاس ورڅخه (۴ - ، ۳ ) پوهېږو.

او همداسې نور

که د یوه ژبني ویی یا توکي یا مورفېم هغه د کارونځای او پر هغه باندې پوهېدنه چې درته روښانه شي، بیا له هغو څخه په غونډلجوړونه کې ناسمون نه راځي، دا دموږ ستونځې په دې حالتونو کې سره اوبی کیږي.

smakhan1946@gmail.com

یوه پای یادونه: ومو ویل، چې مورفېمونه خپلواکه پوهېدنه نه لري، خو د اړونده – دلته – د نوم او نومځاینیوي دنده بدلوي.

د بېلګې په توکه که ،، ما ،، لرو، نو دا کړونی یا پرېکړونی نومځاینیوی دی، خو له دې سره یا له دې څخه د مخه کوم مورفېم ځاي په ځای شي، بیا هغه خپل دکړوني یا پرېکړوني حالت و یوه نه کړنې حالت ته بدلوي، چې د موږ په لیکنه کې دا د خاوندوالي مورفېم او دا نور د پسېځاینیوو حالت کې اړونده مورفېمونه دي.

لکه ،،د ما،، ، ،، له ما ،، اونورو چې لرو، له دې امله هم ورڅخه تېرېدنه ناسمه ده.

ډاکتر ماخان مېږی شینواری

# تکیه اړ- او ځانیز نومځاینیوي

داسې یو څه به د نومځاینیوو او حالتونو ښه روښانونه نوره هم وڅېړو.

له هرڅه څخه د مخه د حالت Kasus پېژند: په پښتو کې څلور حالتونه لرو، کړونی، پرېکړونی، د خاوندوالي حالت او د پسېځاینیوو حالت، کاسوس یا حالت څېړي چې نومویيونه د غونډلې د نورو توکو سره څه اړیکې لري او دا نومویيونه څنګه له حالت سره ځان سنبالوي. په نورو ژبو له بېلګې څخه یې په

الماني ژبه کې نومځاینیوي بدلیږي، خو په پښتو کې دا دنده د حالت مورفېمونو نیولې، چې خپله کومه پوهېدنه نه لري، خو د نوموېون سره مل ځان د حالت سره سنبالوي یا برابروي او که سموي او دا دي: ،، د ،، د خاوندوالي لپاره د نومویېونو دنده بدلون لپاره مورفېم.

،، له، تر، پر، په، و،، د پسېځاینییو لپاره د نومویېونو دنده بدلون لپاره مورفېمونه.

دې ته بیا بیا وته نیسم، ځکه چې زیات ناسمونونه همدلته راځي، چې دا مورفېمونه یواځې او یواځې پههمدې ټاکلو ځایونو کارول کیږي او بس.

اوس راځو نومځاینیوو ته: موږ په پښتو کې دوه ډوله نومځاینیوي لرو:

لومړی - ځانیز نومځاینیوي او کارونې یې

دویم- کلیتیکي یا تکیه اړ نومځاینیوي او کارونه یې. دا نومځانیوي په رېښتونې په یوه څه پسې تکیه اړ وي او یا ان چې ورپسې سلیبش - یا نښتي وي.

ګډه کارونه او د کاره-ونو پرتله- کونه یې.

و لومړي ته : دا په دوه برخو وېشو:

پیل یادونه: زه به یواځې د لومړي کس نومځاینیوي یا - - لپاره نومځاینیوي وکاروم.

لومړی ۱ – یوګڼي: زه، ته، هغه،هغې...

لومړی ۲ – ډېرګڼي: موږ، تاسو، هغوي

لومړي ۱ ته: دلته د هر کس لپاره دوه دوه نومځاینیوي لرو:

لومړی ۱ ۱ – زه، چې د کړنویونو لپاره د اوس او راتلونکي وخت لپاره کارول کيږي او د هغه کړنوييونو لپاره، چې پرېکړونی نه لري، د تېر وخت لپاره هم.

زه ځم، زه لاړم، زه خورم، خو.. نور لاندې.

لومړی ۱ ۲ – ما، چې د تېروخت د هغه کړني لپاره کارول کيږي، چې پرېکړونی ولري، په دې پوهېدنه، چې دا کار په يو څه د څه د کړو سره سرته رسيږي. ما وخوړ(ه)

و لومړی ۲ ته: د ډېرګړو د کړنو لپاره دا نومځاينيوی ،، ما، موږ، ...،، نه بدليږي. موږ(تاسو، هغوي) وخوړل ( لاړو) .

يادونه: پوښتننومځاينيوي دي: څه، چا. که موږ دلته پوښتن نومځاينيوي د زه او ما په ځای وليکو، نو دا چا د کړوني لپاره راځي او په پرېکړوني کې نه راځي. بېلګه: څوک څوک وهي. چاڅوک وواهه.

و دويم ته: تکيه اړ نومځانيوي په دوه ډوله دي:

دويم ۱ – د مخه تکيه اړ نومځاينيوي دي: را ، در، ور

دويم ۲ – پسې تکيه اړ نومځايميوي:مې، دې، يې، مو( دا د موږ او همداسې د تاسو لپاره کارول کيږي)

و دويم ۱ ته- دا دوه ځايونو کې يا دوه ډوله کارول کيږي يا که له کړونو او نه کړونو سره نومځاينيوو(رېکتوس - او اوبليکوس) حالتونو څخه و مخ ته لاړ شو، نو په دواړو کې کارول کيږي.

دويم ۱ ۱ – که دا نومځاينيوي د کړونو په څېړ وييونو و مخ ته راشي يا ورسره نښتي يا سلېښ وي، نو د کړنوييونو سره لوريز کړنوييونه په ګوته کوي، لکه راځم، راځي، ورځې، ورځي، ورځۍ...

بله بېلګه: راکوې، ورکوم، درکوي او نور.

و دویم ۲ ته: دا هم دوه ډوله کارول کیږي یا ښه یې په دوه حالتونو کې کارولکیږي.

دویم ۲ ۱ – دا تکیه اړ نومځاینیوي تل په یوه نوم، نومځاینیوي او یا یو څه پسې تکیه وي.

که دا نوم یا دا یو څه یانومځاینیوی د پرېکړوني په حالت کې وي، نو پسې کړنه راځي یا که کړنه پسې راشي، نو دا پسې تړلی نوموېي یا څه یې پرېکړونی دی.

بېلګه: ته مې ووهلې، زه یې ګوزار کړم. هغه دې راوړ. کور مې واخست.

یادونه: ګورو، چې موږ په پښتو کې همدا دوه نومځاینیوي ، زه او ما لرو، چې د کړوني او پرېکړوني لپاره کارول کیږي. له دې څخه داسې پوهېږو، چې د لومړي او دویم حالت یا د کړوني او پرېکړوني حالت لپاره.

دویم ۱ ۲ - که ولرو: (را،در، ور)( څخه، سره،کره،پورې، باندې، ته.....)

دلته دا پوره یو حالت دی، چې کېدی شي د پسېځاینیوو حالت یې وبولو، ځکه، چې دا و مخ ته تکیه اړ نومځاینیوي، ټیک وپسېځاینیوو ته تکیه دي او نه بل څه ته.

دا اوس د ځانیزنومځاینیوو سره څنګه لیکو؟

له ما سره (څخه، کره، پسې) = را سره(څخه، کره، پسې) له دې لرو چې:

را = له ما

تر ما پورې = را پورې دلته بیا را = ترما

په ما کې = را کې له دې لرو: په ما= را

پر ما باندې = را باندې.له دې څخه لرو: پرما = را

و ما ته = را ته. له دې څخه لرو: و ما = را

له پورته څخه لاس ته راځي، چې: له، په ،پر، تر ، ته، باندې...... مورفېمونه دي، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري، خو د اړونده پسې نوم یانومځاینیوي دنده بدلوي. دلته د ،، ما ،، ، چې د کړوني او پرېکړوني لپاره په بدل ډول کارول کیږي، دلته یې دنده، له ،، د ،، سره، چې ،، دما کور،، لیکل کیږي او ،،د ما،، د خاوندوالي نومځاینیوي کیږي او همداسې د پسېځاینیوي حالت کې هم د د ،، ما ،، دنده د ( له، په ، پر، تر ....) سره په اړونده ډول بدلیږي.

په پورته پسېځاینیوي حالت کې دا هم غوره ده، چې:

۱ - له ،،له،، سره: څخه، سره، کره، پسې ټاکلکیږي او له څخه، سره ، کره پسې سره ،،له،، یواځنی ټاکلکیږي.

۲ – له ،،تر،، سره ،،پورې،، یو یواځنی ټاکلکیږي.(دا یو ویاځنی په دې پوهېدنه چې تر یواځې هلته راځي، چې پورې یې پای کې راځي او پورې هم هلته راځي، چې تر وي ،، تر کور پورې،، بل ډول ناسم دی او بس).

۳ - همداسې له پر سره باندې او په څټ له باندې سره پر.

۴ - له ،،و،، سره ،،ته،، او په څټ

دا اړیین دي، چې بیا هم ګوته ورته ونیسو، چې، له، تر، په، پر، و او که نور په مدې ژبلاریزه ډله کې راځي، بل ځای کې ځای نه لري، د موږ ژبپوهان او ژبمینه وال یې دا ،، تر ،، ډېر کله ناسم کاروي.

یوه غونډله او شننه یې:

ښځه و خپل ورور ته د خپل مېړه خولی ورکوي.

په پورته کې ښځه کړوني، وخپل میره ته (د پسېځاینیوي حالت پوره کونه)، د خپل مېره( خاوندوالي حالت پوره کونه)، خولې ( پرېکړونې حالت) ورکوي( کړنه).

پای لاس ته راوړنه: موږ د دې لیکنې سره داسې وښوده یا ښه یې: بیا نوره هم روښانه کړه، چې پښتو څلور حالتونه لري: کړونی، پرېکړونی، خاوندوالي او د پسېځاینیو حالت ( دې ته دې پام وشي، چې څنګه ښه نومول کیږي).

یوه غوره یادونه: د موږ ډېر ناسمونونه له همدې مورفیمونو له ناسم کارونې سره و منځ ته راځي، نو ما هم لږ زیات پام و همدې ته وکړ.

و دویم: ۲ ۲ ته: که ولرو: کور مې کوچنی دی، نو دا د ځانیز نومځاینیوي سره دا سې لیکو: د ما کور کوچنی دی، په دې پوهېدنه چې د ،، ما ،، سره یو بل مورفېم ،، د ،، مل شو او ،، ما ،، دنده یې بدله کړه.

د مخه مو په لیکنه کې ولېدل، چې هلته ،، مې ،، د ،، ما،، په پوهېدنه وو.

د ژبې د پیداېښت په بنسټ پوهېږو، چې لرو: د ما کور کوچنی دی. دلته خو بې له ،، د ،، څخه، چې ،، ما ،، یواځې وي، څه نه پوهېدل کیږي او ،، د ،، هم دیوه مورفېم په څېر خپلواکه پوهېدنه نه لري، نو له ،، ما،، سره یو ځای د خاوندوالي نومځای نیوی کیږي ( دلته دې فکر وشي، چې دا ،، د ما،، نومځاینیوی شو او که ؟؟؟؟) چې د خاوندوالي حالت غوره کړ.

دلته لیکو چې: دما کور کوچنی دی. دا به د خاوندوالي حالت وبولو، چې دی.

دلته نو ،، د ،، څه شی دی او دنده یې څه ده؟

بیا: دلته ،،د،، یو مورفېم دی او کومه خپلواکه پوهېدنه نه لري، نو دنده یې باید بل څه وي او هغه داده، چې د لته د ،، ما ،، دنده بدلوي، چې دا ،، ما،، په مرسته د خاوندوالي نومځاینیوی شو او د ،، ما ،، دنده یې د کړوني څخه و د ،، د ،، سره مل د خاوندوالي – یا نه کړوني نومځاینیوي ته راوسته.

دا بیا روښانه په ګوته کوو، چې ،، د ،، یواځې او یواځې همدا دنده لري او بس.

## حالتونه او ،،زما،، که ،،دما،، او نور Causus

یادونه :

۱ ـ دا لیکنه به کیدی شي بیا ځل څه ولري، خو بیا همغه هوښیاره خبره ده، چې دوه واره کنډلی کلک وي.

۲ – د تازه څېړنې له مخې به دا حالتونه داسې وبول:

۲ ۱ – ګړونی حالت نومیز یا نومیناتیو.

۲۲ – پرېکړونی حالت. اکوزاتیو( اوس په دې و پوهېدم، چې پښتو اکوزاتیو ژبه نه ده)، خو د ځنو کمونو او زیاتونو سره، چې نه یې ډېروم.

۲ ۳ـ د خاوندوالي حالت. جینیتیو

۲ ۴ – د پسېځاینیوو حالت. داتیو.

دا دې په اړونده لیکنه کې وکتل شي.

له هغه وخته مې چې د نومځانیوو او حالت په هکله لیکنې کړي، نو د همغه وخت راپه دېخوا مې زړه وو، چې دا لیکنه سرته ورسوم، خو په خیل اند او فکر مې ورسره ستونځې هم پوره ډېرې وې .په دې لیکنې دادئ پیل کوم، په دې هیله، چې ژبپوهان او نور د ژبې مینه وال به په کې شونې ونډه واخلي، زه یواځې دا موضوع تاسو ته د خپل اند سره سمه، د ما پر پرلپسې څېړنو بنسټ باندې او په پوره هڅو پوهنیزه توګه وړاندې کوم .دا چې څنګه مخ ته لاړ شو او لاسته راوړنه به یې څنګه او څه وي، دا تاسو ژبپوهانو ته درپاتې دئ.

زما لیکنې ټولې د الماني په مرسته دي، نو دا چې په الماني کې حالت څنګه دئ، هلته روښانه لار شته او ټولې لارې هم د نومځاینیوو او نورو له لارې روښانه شوې دي، خو په پښتو کې داسې نه ده او زه ورسره ستونځې لرم، چې

دا نو باید ځنګه وشي .دا چې پښتو هم دنوروژبو په څېر پیداښت او د/پیداښت سره سم دا هم یوه پوره ژبه ده، داسې لارې یا خپلې لارې لري، چې زه یې د ما د ځېړنو پر بنسټ باندې وتاسو ته ستاسو و مخ ته ږدم ، دا چې ځنګه وشي او ځنګه د ژبلارې له لارې دي، ستاسو دنده دې وي .که په دې هکله لیکنې ولرو، زه لکه تل په خواشینۍ وایم، چې ترې خبر نه یم او که لیکنې وي هم باور وکړئ، چې دا به خپل ځېړنیز غوره-والی ولري او تاسو به ګډ کار ته راوهڅوي.

ګرانو لوستونکو!

د دې لیکنې څخه مې موخه دا ده، چې دا حالتونه موږ په پښتو کې وڅېړو ، چې څو او کوم دي او په دې برسېره د همدې حالتونو په بنسټ یا مرسته وڅېړو، چې دا د ملکیت له پاره دا دما، دتا سم دې او که نه زما او ستا .موږ دا درې ډوله په ژبه کې لرو، چې ځنې ځایونه دما، دتا او همداسې یما او ځنې بیا زما او ستا او بله ډله یې یما، یتا وایي .دا یوه پوهنیزه ځېړنه ده او دا اجازه به ځان ته ورکړم، چې له تاسو درنو ژبپوهان او مینه والو لوستونکو څخه د ګډ کار هیله وکړم.

## دا حالتونه د پوښتنو په بنسټ رامنځ ته کیږي

یادونه: دا لیکنه مې هم څه وخت د مخه لیکلې، چې دامې لا نه وو ځېړلي، چې پښتو اېرګاتیو ژبه ده.

بیل یادونه: په بیل یادونه کې دا په پام کې ونیسو، چې ما دا حالتونه د الماني حالتونه ځېړلي، چې پښتو حالتونه یې ورسره سر نه خوري، خو کته مې ترې احستې او پل پهپل به به دې لیکنې کې د دې ستونځو لپارهاوبې ګورو ( ستونځوبی لکه ګړوبی)

نومیناتیو **Nominativ** (له لاتین څخه، نومونی یا نومونیز) په ګرامر کې د یوه حالت نومونه ده، چې له هرڅه څخه دمخه ( دمخه مې ناسمه،، د هرڅه له مخه،، لیکلی وو) په جمله کې د شي د نخښونې په چوپړکې دی، د دې له پاره

دا هم تيپيکي يا نومونييز دئ چې د يوه شي د خپلواک کارونې له پاره رامنځ ته کيږي ( دا په دې پوهېدنه، چې بې د بل له واکه).

لنډ: دا حالت دئ، چې د ،،څوک-، چا – او څه حالت،، بلل کيږي، د يوه حالت سيستم په توګه رامنځ ته کيږي، چې دا نوميناتيو – اکوزاتيوسيستم بلل کيږي.

بيا: د نوميناتيو يا د ،، څوک،،چا - ،، او ،،څه شي،، حالت.

موږ د ګړنو يا کړ له مخې د دوه ډوله ليکنو سره مخامخ يو:

لومړی:

يوه يادونه پسې شته

سپين يا هغه کار ته ځي

سپين يا هغه کار ته لاړ

سپين يا هغه به کار ته لاړ شي

سپين يا هغه کار ته تللی وو

څوک کار ته.......

سپين يا هغه

زه کار ته ځم

زه کار ته لاړم

زه به کار ته لاړ شم.

زه کار ته تللی وم.

دويم ډول يې:

زه مڼه خورم

زه به مڼه وخورم

ما مڼه وخوړه

ما مڼه خوړلې وه.

لنډه يادونه: وروسته به وګورو، د ،، زه کا رته لاړم،، په ځای به سم ،، زه وکار ته (و)لاړم،، سم وليکو. د ژبلار او په ژبلار کې د ما د نوو ميندنو په بنسټ ( دا دې هملته ( همهغلته) وکتل شي).

دا همداسې د دويم کس له پاره ته او تاسې راځي او د ريم کس له پاره هم هغه او هغه راځي( په دې دريم کس کې ليکنه يو ډول ده، خو د ويلو څخه بريښي، چې لومړۍ ه څرګنده يا روښانه ه ده او په دويم کې بيا دا پڅه ه ده او که بل ډول يې بولۍ. هغه زور او زورکی مې ښه نه راځي، چې په پښتو کې نه شته)

يعنې په دريواړو کسانو کې يې توپير يو ډول دئ، چې د کړنې پرته يې په څو کړنو کې نومځاينيوی هم بدليږي، نو له دې امله دا د څه - ، چا- او څه حالت دې.

مور کار ته ځي.

څوک کار ته ځي؟ ځواب: مور

د وروستنيو څېړنو پر بنسټ باندې به وګورو، چې داپورته داسې ليکل کيږي:

مو وکار ته ځي

څوک وکار ته ځي؟ ځواب: مور

کاليمينځی خرابيږي.

څه شی خرابیږي؟ ځواب:کالیمینځی

یادونه: و ماته هم دا نومونه توکلي د لیکونې ( قلم) خولې ته راځي.نه پوهیږم،،چې دا اله، چې کالي پرېمینځي،کالیمینځي، کالیمینځی، کالیمینځونی یا کالیمینځونکی وبولو. او که نه،نو کالي مینځلو اله. څنګه مو چې خوښه وي.

## جینیتیو Der **Genitiv**

جینیتیو د الماني ګرامردویم حالت دی.

دا به موږ په پښتو کې هم اسې روښانه کړو، چې د خبرو باید وي:

لومړی: دا حالت د ملکیت حالت یا د ،، ،،دچا،، حالت په نامه هم یادیږي.

یادونه: په نومیز حالت ،، چا-،، وو او دلته ،، د چا-،، حالت دی.

بیلګې: ،،د ګاونډې کور،،.

دا د چا کور دي؟ دا د ګاوندې کور دی

،، د یوه لرې زنګ غږ،،.

یادونه:

اوس ګورم، چې دا لاندې سم نه دی او دلته باید د اړونده حالت هغه اړونده مورفېم ،، د ،، راشي.

د جینیتیو ،،په څه (شي)،، حالت

هغه په غلا تورن دی.

هغه په څه (شي) تورن دي ؟ ځواب: په غلا

یادونه: په وروسته لیکنو او دما په میندنو کې به وګورو، چې دا حالت په پښتو کښې زیات د پرېکړوني لپاره راځي.

**Dativ** Der داتیو ( دا اوس موږ په پښتو کې د پسېځاینیوو حالت بولو( ښه یې : دی))

یادونه: دا لیکنه د موږ پر ورسره بلدې لار باندې سم دي، خو د موږ د نوې ژبلار سره و سمون ته اړتیا لري.داتیو د الماني ژبې دریم حالت دی یا په جمله کې دریم حالت په ګوته کوي. داتیو د ،، و چا، له چه، پرچا، او نورو حالت،، هم بلل کیږي.

د داتیوله پاره په الماني پوښتنه پوښتنه کیږي، چې چا ته (سمه پوښتنه یې : و چا ته) او همداسې له چا، پر چا...؟

دا به په حالتونو کې روښانه وي.

بیلګې: زه و دې میرمن ته د یادښت کتابچه ورکوم. و چا ته د یادښت کتابچه ورکوم؟ ځواب: و دې میرمن ته.

هوګی سوغات و سپین ته ورکړ.

هوګی سوغات و چا ته ورکړ؟ځواب: و سپین ته

زه و زما ( دما) ملګري ته یوکتاب سوغات ورکوم.

وچا ته سوغات ورکوم؟ځواب: زما(دما) و ملګري ته.

د دې حالت سره په نږدې څېړنه کې دا حالت ما د پسېځاینیوو حالت بللی. د ما میندنې او نوې لیکنې دا روښانه کوي.

---

اکوزاتیو Akkusativ دا حالت به دلته رایاد کړو، خو د ما د وروستنیو په بنسټ کموتاتی ژبه نه ده، نو داحالت په پښتو کې نه لرو. هغه پهپښتو به د ځنو څه پوهېدنه ورکړو، خو د پښتو د ژبلار په لار به نه وي.

یادونه: د دې حالت اړونده حالت لیکنې په نورو حالتونو برېښي.

اکوزاتیو یوګرامري حالت دۍ. په ورځنې الماني ګرامر کې دا د څلورم حالت سره ترتیبیږي. د دې د روښانتیا له پاره په الماني کې پوښتنه کیږي، چې ،،څه (شی)،، یا څوک او که ،،د چا؟؟؟،،، نو دا له دې امله د څوک حالت هم بلل کیږي.

اکوزاتیو: د ،، چا - یا څه شي حالت

ښاغلی سپین خپل ورور ګوري

ښاغلی سپین د چا لیدنه کوي؟ ځواب: د خپل ورور

یادونه: دا حالت په پښتو کې کله د پرېکړونی حالت دی او کله د خاوندوالي حالت دی، هلته به ورباندې وپوهیږو،

دا پورته غونډاله زموږ پښتو کې داسې ورځنۍ نه ده، نو دا څنګه ده؟ سمه او که ناسمه.

زه خپل (و)( اوس مې ور زیات کړ) ملګري ته یوکتاب ډالۍ یا سوغات ورکوم.

زه خپل ملګري ته څه شی سوغاتوم یا ډالۍ ورکوم؟ ځواب: یوکتاب

بیا پورته سره ،، و ،، نه دۍ لیکل شوی، نو:

زه و خپل .......

دلته له هرڅه څخه د مخه یوه یادونه ده، چې باید پام موورته وي:

له دې څخه د مخه: تر دې وخت پورې مې لا دا حالتونه داسې سم نه وو څېړلي، نو دلته هم هغه غوښتونې څېړنه نه شته.

دا ګرانو لوستونکو لپاره هم کتوره ځکه ده، چې له یوې خوا به د ما پر ستونځو باندې وپوهېږي او دا چې پخپله به هم د لومړي ځل لپاره مخامخ وي، ښه به یې پام ورته راوګرځی.

لنډ: په پښتو کې یواځې پوستپوزېشن شته او بس. دا مې لومړنی اند دی، خو وروسته بهوګورو، چې مخځاینیوي شته او که نه؟ زه داسې لړ ،، بې ،، په یوه فکر راوستی یم، چې دا مخځاینیوی دی او که نه.

توپیر: بیکاره، بې له کاره او بې له کار څخه. دا به نو ژبلاریزې څنګه سره توپیر کړو. که دا بې له کار څخه وي، نو له کار څخه داتیو حالت دی او دا بېځ ... دا پام وړ دی. همداسې بې له کار څخه به د لهکار څخه پرته سره انډول وي. دلته پوښتنه دا ده، چې ایا دلته ،، ببې ،، مخځاینیوی کېدی شي او که نه.

ما دلته سربل لیکلی یا دلته د پښتو اوستربلونه زیات دي او همداسې کیدی شي سیرکومپوزېشنونه هم وي،چې هغه به ګران لوستونکي په اړونده ځای کې ولوستلی شي. د نه کارڅخه نیمګړی کار هم هرومرو ښه دی، په ډېره بخښنه، که دا کار موسترې کړي.

یادونه: د دې سر بلونو او اوستربلونو.... باندې خو نه پوهیږم، خو ما هغه د الماني انډول یا د یوه اماني وی انډول د دې له پاره اړیکویونه لیکلي، ناسم نه دی، ځو ستاسو خوښه

دې ته هم یوه پیل یادونه:

دلته هم هغه ستونځې، چې لرودې مو د نوو څېړنو سره سمې شوی، خو سړه سینه به ورته لرو. دا هم د موږ په هغه ورسره بلده بنه یا پوهېدنه ناسم نه دي، خو په نوې پیدا بنه دي.

یادونه: ما په لیکنه کې پورته څنترپوزېشنونه لیکلي. په راتلونکو لیکنو کې به ګورو، چې پښتو یواځې پوستپوزېشنونه لري او بس.

ــــــ که له الماني څخه يې راواخلو، نو (بايد فکر ورته وکړو، چې په پښتو کې به څنګه وي؟) حالت يا کاسوس په الماني کې څلور حالتونه په نخښه کوي.
حالت موږ ته ښايي، چې نومن د نورو توکو سره په جمله کې د نومن، د ، ملکيت، داتيو او؟؟؟؟ څنګ نورې څه اړيکې لري. نومن يا نومونه، د هغه ملګري(چې ښځينه نارينه ترې څرګنديږى( الماني يې ارتيکل)) همداسې وکيل يا نماينده( نومځاينيوى) په حالت کې جوړيږي.

دې ته سړى کردان يا بدلون وايي .نومونه، ارتيکل يا نر -ښځينه والى او نومځاينيوي د خپلې دندې له مخې ګردانيږي يا بڼه بدليږي

**حالت د څه له پاره په کار راځي؟Wofür braucht man den Kasus?**

**د دې لپاره چې د حالت موخه باندې وپوهيږو، غوره ده چې يوځل يوه جمله په پام کې راولو، چې توکي يې ګردان يا بڼه-بدل شوي نه وي .دلته پام ته راځي، چې دا چې دايوګوني حالتونه نه يواځې يوه دنده لري، بلکه د دې له پاره مسئوليت يا دنده لري، چې موږ وپوهيږو .يوه غونډاله چې دا په پام کې ونه نيسي د پوهېدلو نه ده.**

دلته يوه بېلګه راوړو:

له نه بڼه بدلون سره دلته د حات اړونده نومځاينيوي بڼه اړوند نه بدليږي:
ښځه وروړملا لور خولې ورکوي.

له بڼه بدلون سره : د ورور ښځه د ښوونکي (و) لور ته خولې ورکوي.

لاندې يې الماني :

**Nicht dekliniert:** Die Frau der Bruder geben der Tochter der lehrer der Hut.

**Dekliniert:** Die Frau des Bruders gibt der Tochter des Lehrers den Hut.

په لومړۍ غونډاله کې د غونډالې ځانګړي توکي بڼه بدل شوي نه دي او په لاس ته راوړنه کې په اړونده حالتونو هم نه دي برابر شوي او په پام راځي، چې غونډاله پوهوړ نه ده .د دې په الماني کې) په پښتو کې باید ځانله څیړنې پرې و شي (د څلورو حالتونو غوره دی، چې دا الماني او زموږ په حالت که دا پښتو یې وپوهیږو .

ګردان یا بڼه بدلېدنه شوني کوي، چې د نومه ونې یا نومیناتیو اړیکي نورو توکو ته روښانه شي سمه ګردانونه یا بڼه بدلونه یې په الماني کې سمه ده او پښتو کې به ورته پام وکړو.

دا چې په دې غونډاله کې کوم حالتونه او څنګه راغلي، د الماني څخه یې پیل کوو او بیا پښتو ته راځو.

Nominativ + genitiv Prädikat Dativ+genetiv Akusativ

Die Frau der Bruder gibt der Tochter desLehrers den Huz

ملکیت)؟ + (نوموی ملکیت +داتیو)؟ (نومن کړنه یا پرېدیکات

د ورور ښځه د ښوونکي ولور ته خولې ورکوي.

لږ تر لږه دلته ګورو، چې د پښتو غونډاله له ملکیت څخه پیل کیږي او پسې ته به ګډ فکر وکړو...

**په الماني کې څلور حالتونه دي او په پښتو کې به ورته وګورو، چې ستاسو کار په کې اړیین دی.**

د الماني غونډاله په نومونه پيليږي، خو لاندې پښتو يې په خاوندوالي پيليږي، پسې نوميناتيو راځي بيا خاوندالی پسې داتيو پسې خولې باندې پرېکړه نه کوم، چې د ګرامر له مخې څه شی دی او پسې ورکوي پرېديکات يا کړنه ده.

## د پښتو حالتونه يې داسې

د ورور ښځې د ښوونکي لور ته خولې ورکوي.

يادونه: دا پورته غونډله د نوو څېړنو په بنسټ ناسمه يا ناپوره ده، چې اوس يې بايد۔ د ماد څېړنو په بنسټ۔ داسې وليکو:

د ورور ښځه د ښوونکي و لور ته خولی ورکوي. ډا ،، و لور،، د اړونده حالت د نومځاينيوي په ځای راځی او د پسېځاينيوي حالت دی.

د دې پوښتنه به داسې وکړو:

د چا څوک د چا چاته څه شی ورکوي؟

يادونه: د اوسنی څېړنې سره به داپورته داسې وليکو:

د چا څوک د چا وچا ته څه شی ورکوي؟

واکوالی نومونه واکوال داتيو نومونه کړنه.

دلته په پښتو کې د اکوزاتيو حالت ګومان مې دی نه شته ( اوس پوهېږو، چې نه شته) .پوښتنه دا ده، چې ايا موږ د اکوزاتيو حالت لرو او که څنګه؟دا د خبرو يوه موضوع بايد وي .په الماني کې هم کله کله داتيو د اکوزاتيو سره رآځي .په پورته غونډاله کې خولی په الماني کې اکوزاتيو دی، خو پښتو کې داسې برېښي، چې نوميناتيو دی، و بيا هم پوره څېړنې ته يې اړتيا شته.

نوموی کېدی شي د چا/ د څه شی له ؟ له لارې وپوښتل شي.

دا حالتونه چې پيژندل – او څېړلکيږي د همدې پورته پوښتنوييونو له لارې کيږي.

يادونه: داحالت او غونډلې يې په پښتو ژبه کې د پرېکړوني د حالت دی، چې روښانه کيږي.

## په پښتو کې نومځاينيوي او حالتونه:

ما تراوسه پورې ( ما ،،پورې،، د مخه ورسره نه وو ليکلی، چې بې له ،،پورې،، څخه ناسم دی) له تاسو سره د الماني نومځاينيوو او همدا ډول د حالتونو په هکله خپلې ليکنې ګډې کړې .راځئ، چې وګورو، چې دا به په پښتو کې څنګه وي .دا به هم له الماني څخه په ګټه اخستنه باندې ودانې وي .

يادونه: دا لاندې او دا پسې ليکنې داسې څه بيا راغلي، خو غوره دلته دا ده، چې دا د کليتيکي حالت يوه برخه ده، چې وروسته پوره څېړل شوې. داچې دا سوچ بوچ نوې دي، نو ګورې، چې ما هم ورسره څومره ستونځې لرودې دي. هيله ده ، چې ځوانان ژبپوهان به يې سره سمې کړي.

## اېنکليتيکي نومځاينيوي:

يادونه:

١- ډلته تکرار شته، خو لوستل يې ګټور بولن.

٢ – دا ليکنه هم وروسته بيا پوره او سمه شوې. دا به د ما په پای ليکنو، اندم چې سمې شوي به وي. او وبه ګورو، چې دا ليکتيکي يا تکيه-اړ نومځاينيوي دي، چې د پسېځاينی حالت کې کارول کيږي.

موږ د نورو ژبو څخه ګټه اخلو، په زياتو ځايونو کې د نورو ژبو څخه ګټه اخستل کېدی شي، خو سره ورته ژبنيزې لارې سره نه لري.

په فارسي کې: مېرم.. او نور، مادرم، ...، او نور

په فارسي کې بیا خاوندوالي هغه نومونو لپاره، چې پای یې بېغږه توري وی، -م،-ت،-ش پسې تړلي او که پای یې غږلرونکي توري وي، نو بیا پسې -یم، -یت او ــیش پسئ تړلي دي.

په پښتو کې: ځم، ځو، ځي، ځئ ... او ور خو موږ مې (دې، یې) په پښتو د کړنوي پسې، م،ې، ي تړلي او د خاوندوالي نومځاینیوو پسې بیا مې، دې، یې مو د مخه وځېرل، چې د فارسې بیا د خاوندوالي نومځای نیوي، ګڼ، په دې پوهېدنه چې مې، دې د پسېځینیوي څخه بیلدي. دا هم وروسته ځېړل شوي او سم دي.

د دې یو لامل دا کېدی شي، چې په پښتو کې د ګړنوي اخر کې دا ورسره زیاتېدنه دکړنوي پسې تړلی یا سره ویلې شوې شته، خو د خاوندوالي نومځای نیوي خپلواک شته دئ او په درې کې دا نه شته یا داسې نه دي.

دا نور نومځاینیوي به د څنګه والي نومځاینیوي وبولو او ګورو، چې د اینکلیتیکي نومځاینیوو سره توپیر لری.

## **Enklitische Pronomina**اینکلیتیکي نومځاینیوي.

یادونه: دا تکرار دی، خو شاید لږ څه نوي ولري، بیا هم که زه سهوه وم بخښنه به وي.

اینکلیکي نومځاینیوي یوه کیدنه لري، چې له یوه کړنوي سره ورزیات یا ورسره ونښلي یا ورسره ویلې شي. کړنوی + ځانیز پسې تړی ډېر زیات د خبرو ژبه همداسې په شاعری کې منځ ته راځي. په ډېرو لیکنیزه ژبه کې ترې ډېه کیږي یا دا د کړنوي سره یوځای په یو بل کې سره وېلې یا ولې شوي، چې یو نوی ویې منځ ته راوړي چې د دې تړنې سره پرېپوهېدنه هم پوره کوي.

د ښېلګې په توګه: اینکلیتیکي نومځاینیوي د یوه شي دنده لري، که دا یوه کړنوي سر ورزیات شي.

ګډوله کونه

- کړنویي + ځانیز پسېتړی په وینژبه او لیکنژبه کې مخ ته راځي او همداسې بله برخه یې

- ځانیزمختړي نومځاینیوي یا اینکلیتیکي نومځاینیوی + کړنوی، چې دا دواړه به لړ ترڅېړنې لاندې( دلته مې،، تر،، لیکلی، خو ناسم دی. سم یې ،، د ،،) ونیسو.

دا نومځاینیوي، نو څنګه روښانه کړو، چې کوم دي؟

که غواړې عکسونه درته ښایم. که غواړې وتا ته عکسونه ښایم.

د او پورته د مخه راولي سره بیا راغلی، خو پام ورته وکړئ. د ما یې لرېکولو ته زړه نه کیږي.

## د کاسوس رېکتوس او کاسوس اوبلیکوس کارونه

یادونه: دا لاندې څېړنبرخه نیمګړې ده، خو وروسته په نورو لیکنو کې پوره شوې.

کاسوس رېکتوس د نومیز او اکوزاتیو حالت لپاره د اوسمهال لپاره کارول کیږي. یوه ځانګړنه شته او هغه داسې ځانیز نومځاینیوو کې اوبلیکوس د الماني و اکوزاتیو ته کارول کیږي. کاسوس اوبلیکوس تل کارول کیږي، که یو ادپوزېشن په نوم تکیه کوي. ځانګړنې په پوستپوزېشنونو کې شته، چې ،، کې، باندې، ته، د پاسه، زیات په رکتوس کې وکارول شي. کاسوس اوبلیکوس د تېروخت بڼه کې نومیز حالت کې هم کارول کیږي.

یادونه: دلته دې اندونه سره ګډ شي. دا څېړنه بل ځای کې پوره څېړل شوې.

دا نسبتي وی و پسې ځاینیوی یاپوستپوزېشن ،، ته،، ته یو اوبلیک دئ. د الماني داتیو ځنګه والي ته انډول دئ او له دې سره د پوست پوزېشن په څیر د موخه لور (چېرته) دنده لري.

بیلګه: و کور ته ځم.

پرمېز(حالت) باندې (اړیکوی) د انګورو (خاوندوالی حالت) له جنډې ( حالت) څخه (اړیکوی) انګورو (نوم) له ځان(حالت) سره ( اړیکوی) وتا( حالت) ته (آړیکوی) درووړه.

ګورو، چې دا مې تر اوسه پورې سنترپوزېشنونه بلل، چې ناسم دي او دا پر، په او نور چې راځي، دا د حالتونو مورفېمونه دي، لکه ،،د،، د خاوندوالي مورفېم.

دلته ټول اړیکویونه پسې ځاینیوي یا پوستپوزېشنونه دي.

## د موړ ستونځې له ژبې سره چېرته دي؟

موږ په رښتیا په خپله ژبه کې ډېرې ژبلاریزې ستونځې لرو. ما چې خپل څه باندې دوه کاله د مخه لیکلی وو، اوس و ما ته په ځانګړې توګه په حالتونو کې ډېرې ستونځې لیدل کیږي، چې په اوسنیو لیکنو کې مې سمې کړي.

ما لیکلې وو: زه باغ ته ننوتم. باغ نوم دی. دا حالت ،،باغ ،، کړوني دی. ،،ته،، پسې ځاینیوی دی، نو باید چې له نوم څخه د مخه د دې پسېځاینیوي اړونده مورفیم ورزیات شوی وي، چې غونډله سمه شي او هغه د یوه ،، و ،، له نوم سره د مخه باید ورزیات شي. اوس به یې سم ولیکو: و باغ ته ننوتم. نوره به هم ښه وي، که دا زه ورزیات شي، چې ،، زه و باغ ته ننوتم،،. دوه نورې غونډلې.

پخوا مې لیکلي: باغ ته ننوتم، باغ کې ...، د باغ نه ووتم. دا کلیوالي دي، خو معیاري یا ښه یې ژبلاریزې ناسمې دي. دا به سمې داسې ولیکو: و باغ ته..، په باغ کې...، له باغ څخه...

په دې هکله مې لیکنې شته.

د ما یوه هیله: که هر چا یو څه سم ولیکل، خو دا د بل چا لپاره پروا ونه لري او ودې منې او ناسمون یې تل باید سم شي.

لاندې به کلیوالي لیکنې او معیاري لیکنې سره یا ښه د حالتونو غونډلې سره په ګډه وګورو:

| | |
|---|---|
| زه باغ ته ننوتم | زه و باغ ته ننوتم. |
| زه باغ کې یم. | زه په باغ کې یم. |
| زه د باغ نه لاړم او نور. | زه له باغ څخه لاړم(ولاړم) |
| دما سره | له ما سره |
| په میز شته | پر میز باندې شته |
| ما پورې راشه یا | تر ما پورې راشه |
| تر ما راشه. | تر ما پورې راشه |

انګلیسي نوموېونه، چې د یوه حالت اړوند دي

بیا او بیا لیکم، تر منځ...، ترمخه، ... او او دا ټول ناسم دي. ،،تر،، یواځې او یواځې د پسېځاینیوي مورفېشم دی، چې دا پسېځاینیوی یې ، پورې دی او پس.

دا مو هم باید په پام کې وي، چې پښتو یواځې او یواځې پسېځاینیوي لري او دا دي:

پورې، ته، سره، څخه، کره، باندې، کې، او نور یې تاسو ولیکئ.

# پښتو او ژبلاريزې نااوبی ستونځې يې

پښتو پنځه زره کلنه ځوانه ژبه ده.

ولې ځوانه؟

په افغانستان کې تر ۱۹۳۰ ز ک پورې د افغانستان رسمي ژبه يوائې فارسي وه. په هغه وخت کې د پښتنو يوه ټولنيزخوزښت بنسټ په جوړېدو(۱۹۳۱ زک ) ، په (۱۹۳۲) د کابل پوهنتون او په(۱۹۳۷ ز ک ) کې د پښتوټولنه جوړ شول، په ۱۹۳۶ ز ک کې د سردار هاشم خان د حکومت په دوره کې پښتو دولتي رسمي ژبې ته پورته شوه، سره له دې، چې په هغه وخت کې پخپله پښتنو هم دومره پام ورته نه دی کړی. په ۱۹۶۴ ز ک د لويې جرګې لخوا پښتو سراسري ژبه ومنل شوه او ملې ژبه هم شوه.

له دې څخه داسې برېښي، چې پښتو ژبې د کار وخت- په داسې لړه سويه- له ۱۹۳۶ ز ک څخه بايد پيل شوی وي او قانوني ، د قانون له مخه يې دا په ۱۹۶۴ ز ک بيا ومنل شو، چې په دې وخت کې ورته پښتانه مشران هم داسې لږ را بيدار وو.

سرلښکر يې:

دا خپله دنده بولم ووايم، چې سر لښکر يې همهغه له اول څخه خدای(ج) بخښلی اروابناد وزير محد ګل خان بابا وو، چې د هغه وخت د واکوالو سره يې د يوه ورور په څېر اړيکې لرودې، په ژبه او هيواد مين انسان وو او د دې توان يې لاره، چې د اروابناد رېښتين صيب له خبرو يې دا پنځه د پښتو ستوري هر يو اروابناد خبيبي، اوربناد بينوا، اروابناد ربنتين، اروابناد خادم او اروابناد رشاد روزلي او د وينا له مخې يې سياسي ستر ملاتړ وو، خو سره له دې هم دې ژبې لاتراوسه هغه خپل قانوني ځای په دولت کې نه دی نيولی.

# د پښتو ژبې وده

له پورته څرګندوني څخه همدا لامل څرګندیږي، چې پښتو ژبه مو په هره پوهنیزه ریښه کې هم پوره ستونځې لري د ژبې تر ژبلار یا ګرامر پورې. د پوهنیزو پوهنتون او د ښوونځي د کتابونو پښتو خوندیونه نه لرو، هغه مسلکي وییونه یې ټول لا تر اوسه پورې عربي دي، چې پښتانه یې د پوهېدنې سره د پوهېدلو ستونځې هم لري، خو دوی هم په هغه وخت او لاتراوسه څه نه کوي یا څه نه شي کولی، پرته له ما څخه، چې د شمېرپوهنې څلوېښت کتابونه مې په پښتو ژباړلي او لیکلي د داسې څه فزیک سره، د پښتو د دوه ګرامرونو سره او همداسې څه نورو کتابونو سره، دا چې دا کار څنګه شونې وو، دا به په بل ځای کې ولیکم ( باور وکړئ او لوړه کوم، چې دا مې د ځان ستایلو له امله نه لیکم، خو د نورو یې و دې کار ته راهڅونه مې موخه ده).

دا هم باید په کلکه ووایم، چې په داسې حالاتو او دې لږ وخت کې، که څه هم دولتي پوره پاملرنه دومره نه ده ورته شوې، دې ژبې او د هغه وخت دمور ستورو د نورو هغه وخت ځوانانو په مرسته دې ژبې ته پوره کار کړی.

دلته مې – له دې لیکنې سره- هغه بنسټیزه موخه په پښتو ژبه او ورسره لرلو ستونځوبیو کې ده.

# د پښتو په ژبلار کې هغه بنسټیزه ستوځې:

زه به د مور ستونځې په حالت( پېر، کاسوس یا د الملني فال ) کې وڅېړم او په نورو برخو کې هم د دې ستونځو لاملونه ورته دي.

دا چې ژبه مو یوه زړه ځوانه ژبه ده، نو ګرامر یې هم باید د ژبې ځوانی ته ورته یا ورسره ځوان وي، دا په دې پوهېدنه چې ژبلار مو له پخوا څخه راته نه دی پاتې - که وي، نو پوره ناپوره به وي- او همدا اوس مو باید چمتو کړی وي. دا چې خپل ګرامر مو لا تراوسه نه لروده او لږ تر لږه په معیاري توګه، نو باید دا ستونځې مو د نورو ژبو په مرسته اوبی کړې وی، چې هغه زیاته ونډه په کې فارسي یا عربي ژبې باید لرودې وی، ځکه چې مور د هغه وخت ژبپوهان ټولو د هر مسلک هر څه مو باید له فارسي رانیولي وی او هغه مو څه نومونه همداسې مسلکي ، چې لرو یا لرودل هغه لا د مخه له فارسي- چې د مور یواځنۍ رسمي ژبه وه – رانیولي وي، نو د مور د هغه

وخت پوهانو ته اړين نه برېښېده يا نه پرې پوهېدل، چې د فارسي د ښه بلدتيا له امله پښتو اندول ورته ولټوي او وهومي. پښتو چې د زده کړې ژبه نه وه، خو نه دا چې نابلده بلکه پردۍ برېښېده. موږ د نورو ژبو په مرسته د پښتو ګرامر هم د پښتو د جوړښت سره سم د پښتو ژبلار ترتيبوو، خو د پښتو د نوې منځ يا ميدان ته راوتلو له امله مو د پښتو ژبې سره هم بايد ستونځې شته وي، چې هغه بيا د ګرامر په ليکلو کې راڅرګنديږي. په دا وروسته وختونو کې هم، که پرته له عربي مو له نورو ژبو څخه د مرستې اخستلو له امله او د ګرامر د توپيروالي له امله، ګرامري ستونځې منځ ته راځي، چې زه به يې په دې ليکنه کې هغه څرنګوالي ته ګوته ونيسم او همداسې له بلې لورې موږ د پښتو ژبلار يا ګرامر د نورو پښتو ژبپوهانو له ژبلار څخه رانيسو او هغو دا کار څکه سم نه شي کولی، چې دوي پښتو زده کړې، بې له دې، چې سم يې و ژبلار ته وررنوځي. د دې څرنګوالي ته به هم ګوته ونيسم.

# په پښتو کې د حالتونو يا پېر سره لرلې ستونځې

پيل يادونه ( ځان ستاينه نه ده، خو اړيين راته برېښي، چې هرڅنګه وي لږ تر لږه ستاسو پام دې دما ليکنو ته راواړم): ما له ښوونځې څخه را په ديخوا له پښتو ژبې سره زوره مينه لروده او اې چې په څلورم ټولګي کې - دامې په ياد دې، چې - د بېګانو سره بلد وم او نږدې دا اخر شپاړس کاله مې په ژوره توګه د ژبې سره کړونی کار پيل کړی او دا هره ورځ ډېر ساعتونه، چې لاس ته راوړنه يې د دوه ژبلار کتابونو ليکل وو، په ژبه کې سمونونه ( هغه وييونو ته کتنه شوې، چې موږ يې ناسم کاروو، دا له سلنې څخه نيولې، چې په پښتو ژبه کې ځای نه لري، تر اوبلن پورې، چې د ،، بهيدونکي،، په ځای يې ډېر ناسم کاروي او دا چې د سويي او معيار لپاره کچه کارولکيږي، دا مې بايد باور وي، چې د موږ ليکنوکي څوک يا ژبپوهان نه پرې پوهيږي او دا سې نور هم). د دوه ژبلار کتابونو سره مې ژب اړوند اته کتابونه ليکلي په ketabton.com کې يې ګران لوستونکي لوستلی شي او دا مې هيله هم ده، چې که دما ليکنې سمې نه وي، نو ......

## اوس هغه ما ژبلاریزې لرلې ستونځې:

بېلګه به همدا له حالتونو څخه راوړو:

موږ لیکو: د هغه نه، د هغه څخه، له هغه څخه او

د هغه سره، له هغه سره.

ما په ،، له ...څخه او د... سره،، باندې یوه ستره لیکنه وکړه، چې دا مې په همدې دوه ډوله ناسم ولیکل، چې ګوندې دا یو دې ،، له،، سره وي او دا بل دې له ،، د ،، سره وي.

دا تر هغې پورې راته سمه برېښېده، چې پوه شوم دا ، د ،، د یو مورفیم په توګه د یوه نوموي (نوم، نومځاینیوی) سره راځي، چې د هغه واکوالی ښایي، له دې پوهېدنه داسې ده، چې ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دی، لکه د هغه کتاب یا همداسې د سپین کتاب، نو دا را ته له هغې څخه وروسته سم برېښېده او پسې بیا په دې اند شوم، لکه د موږ ټول ژبپوهان تراوسه پورې، چې دا له... څخه دی، دا په دې پوهېدنه، چې دا یو سنترپوزېشن دی، په دې پوهېدنه چې نوموی یې په منځ کې راځي او د موږ ټول ژبپوهان یې ،،سربل او وستربل بولې،، ، چې زه په رښتیا نه پرې پوهېږم او نه مې چېرته ولوستل، چې ولې.

دا باید ووایم، چې د موږ ټول پوهان او همداسې ژبپوهان هم ډېروخت د یوه څه پوره پېژند نه ورکوي او هغه کاروي، چې دا مو هم یوه بنسټیزه ستونځه ده.

اوس هم داسې انګېرل کېږي، چې هغه د انګرېزې from او الماني von لپاره موږ د پښتو انډول ،، له،، بولو یا داسې شاید کله، کله ،،څخه یا نه ډېر کم او که وي، نو له دباندنیو ژبپوهان څخه به ،، له...څخه،، او له ما څخه هم زیات ،، له... څخه،، لیکل - یا بلل شوی وي، چې ،،دما،، وروسته، چې دا د ما میندنه ده، لږ ګوته ورته ونیول شي او لیکنې پرې یو څو لرم، چې د کتلو وړاندیز یې کوم، چې دا په ژبه کې راته د ما یوه ستره لاس ته راوړنه هم برېښي.

له دې سره مې باور دی، چې موږ د پښتو ژبې د دې اړخ ستونځوبیو لار میندلې وي، چې ګران لوستونکي دې هیله ده په غور ولولي.

موږ په پښتو ژبه کې لرو: موږ نومځاینیوي لرو: زه، ما، ته ، تا، هغه، هغه او ... نور او دا په همدې څېره یا په همدې ډول په حالتونو کې د کړونو او پرېکړونو او همداسې نه کړونو لپاره، دا په رد بدله بڼه کارول کیږي،
لکه: ته ما وهې، تا زه ووهلم.
په نورو حالتونو کې باید یو څه بل ډول وي ( پسې روښانه کیږي، خو دا پوره ژور دما په - همدې هکله - لیکنو کې پوره روښانه شوي).
دلته دی، چې د from او von انډول ،،څخه،، دی، نه ،،له،، او همداسې نه ،،له ... څخه،،.
په دې کله وپوهېدم یا مې کله ورته پام شو؟
کله مې چې دې ته پام شو(وپوهېدم؟؟؟ دا دې لا د تاسو تر مرستو پورې وي)¸ چې پښتو دوه حالتونه رېکتوس او اوبلیکوس لري او همداسې کلیتیکي ( تر دې وخته پوري مې هم اینکلیتیکي لیکل) نومځاینیوي، نو وپوهېدم، چې دا ،، له، تر، په، پر،، او نور خپلواکه پرېپوهېدنه نه لري او د نومویونو سره یوځای راځي د اړوند حالت لپاره، چې هغه حالتونه یې، چې دا یې د نومویونو سره راځي، اوبلیکوس حالتونه دي، چې بې له دې هم ناسم دي او دا ځانله ما، زه، تا ... او نور یواځې هم په هغو حالتونو کې کومه پوهېدنه نه لري. دې ته به هم وروسته ګوته ونیول شي.

## ولې باید دما خبره سمه وي؟

د ټولو په سر کې:
دا پوښتنه هم ځکه لیکم، چې د ما دا لیکنې به د موږ په ژبلار کې د لومړي ځل لپاره وي، نو وبه اندم، چې ناسمونونه یا لږ تر لږ د ځنو ادیبانو څه شننیز ګومانونه به ورته پیدا وي، چې دا باید د خبرو له لارې اوبی شي.
یو څه چې د هغه لیکنو په هکله پر پوهنه باندې ودانې لیکنې وي، نو تر هغې پورې سمې دي، تر څو پورې یې چې ناسمون پوهنیز نه وي ښوول او روښانه شوی.
د دباندنیو ژبو او د دباندنیو پښتو ژبپوهانو ډېرې ګټې او دا د موږ غوندې لرلې ستونځې.

موږ چې په هره ریښه کې یو څه زده کوو، نو بې له یوې وتلې دباندنۍ ژبې پوهېدنې څخه دا کار ناشونی دی، که دا ژبه هم وي. له بلې ژبې څخه موږ پوهنیز نومونه هم زده کوو.

چې داسې وي، نو د موږ د ژبې په ریښییزو لیکنو کې ولې تول ریښه اړوند شیان وییونه او نومونه مو د بېلګې په توګه پښتو نه دي؟

د مخه مو دې ته ګوته ونیوه، چې ژبه مو ځوانه ده او د موږ مسؤلو کسانو ته دا د عربي نومونه داسې بلد پرېښېدل، چې په پښتو یې زیات نه پوهېدل او یا ورته اړیین نه برېښېدل او یا یې په کې بېخي فکر نه کاوه، دا چې ولې ډېر نور لاملونه هم لري. دوی ورسره اړیین د خپل پښتو وي په څېر بلد وو. دا حالت تراوسه پورې ځکه داسې دی، چې هغه ډېر د لیک لوست خاوندان مو لا تراوسه په همهغه ډول روزل شوي او دا خپله ژبه ورته پخپله یا دومره پوره نه برېښي او اندې، چې دا یې د ژبې وي، خو دې ته فکر نه کوي، چې د خپلې ژبې وییونه یې له منځه ځي. ژبه غزونه سمه ده، خو نه د خپلې ژبې وییونو پرېښودنه.

ژبلاریزې ستونځې هم په همدې توګه. موږ د نورو ژبو په ژبلار یا نورو ژبو نه پوهېدلو، او د همهغه له فارسي یاعربي ژبې له ژبلار مو ګټه اخستې، چې هغه بیا د موږ د ژبې له ژبلار سره ډېر توپیر لري.

بخښنه. لیکنه را څخه غزیږي. اوس بېرته وموخې ته.

موږ له دباندنیو پښتوپوهانو څخه - دا اوس دما ورته پام شوي- پښتو ژبلاریز څه هم زده کوو. دا چې دوی یا نور ژبپوهان یې په نورو ژبو پوهیږي او په هغو کې لولي، نو د پښتو سره غبرګ ( هغه غبرګ یا غبرګون، چې د موږ ژبپوهان یې د څه موخې لپاره لیکي، ناسم دی) ګرامري توکي له هغو ژبو رانیسي. ما هم له همغو ژبو دا وماته تر اوسه پورې نا څرګند ژبتوکي لکه چې ژبه مو دوه حالتونه، رېکتوس او وبلیکوس لري، زده کړل او همداسې کلیتیکي نومخانیوي، چې په مټه یې لیکنې اوس تاسو سره په دې لیکنه کې شریکوم.

هغوي هم د پښتو سره دا ستونځې لري، چې له von څخه ،،له،، پوهیږي، چې نایم دی. لنډ دا موږ ورسره نابلدو کارولو سره دوي هم باید نابلد وي. دوي ژبه باید له موږ څخه زده کړي، خو دوي د خپلو ژبو کره ژبلار لري، خو پښتو بیا دوي داسې کله بېرته ورکولی شي، لکه پښتانه ژبپوهان.

# دا دموړ ستونځې به بیا داسې لنډې سره وڅېړو:

و حالتونو ته مو په دې لاندې لښتکي کې پام کړی:

| حالت | الماني | پښتو |
|---|---|---|
| کړونی | ***Ich*** schlage dich | زه تا وهم (۱) |
| پرې کړونی یا نه کړونی | Ich habe ***dich*** geschlage Ich=Nominativ; Dich= Akk. | ما ته ووهلې |
| | په پورته کې دواړه وختونو کې Ich کړونی دی او dich پرېکړونی | پورته :زه او ما کړونی تا او ته پرې کړوني |
| د خاوندوالي حالت | Mein Buch | د ما کتاب (۲) |
| Michاکوزاتیو | Du hast ***mich*** geschlagen | تا زه ووهلم(۱) په دې غونډله کې د الماني اکوز. د پښتو پرېکړونی دی. |
| دنه کړونیحالت | Von mir | له ما څخه (۳) |
| Michاکوزاتیو | Für mich | د ما لپاره (۴) دلته اکوز. د پښتو د خاوندوالي حالت دی. |

دا دوه که له پیل څخه دا څلور حالتونه.دلته د هر حالت لپاره یوه غونډله راوړل شوه، چې اوس یې لږ څېړو:

د پورته اړونده لښتکیو داسې لږ روښانونه:

له (۱) څخه: ګورو، چې په پورته اړونده پرتو لښکیو کې په الماني یو کړونی او یو اککوزاتیو حالت دی. دا په پښتو کې دوه د بېلو وختونو سره اړوند او همداسې دوه پرېکړوني، خو د ردبدلېدنو سره. که ،،زه،، کړونی وي، نو پرېکوړنی یې بیا په دې حالت کې ،،ما،، دی او که کړونی ،،ما،، وي، نو پرېکړونی یې ،، زه ،، راځي.

یوه بله غونډله: دلته ګورو، چې د یوې ژبې یو څه په بله ژبه څومره ګرامري پوهېدنو له امله ستونځې لري.
بېلګه: I love you; Ich liebe dich ته و ما ته ګران (ه) یې. په انګرېزي کې څه نه وایم، ځکه نه پرېپوهېږم، خو دا په پښتو کې سوچ بوچ بل ډول یا بل څه وایي: ،،ته ګران یې،، پرېکړونی دی و یو چا ته او هغه ،، وماته،، دی، چې دا د نه کړونی حالت دی. دا چې څوک یوه پردۍ ژبه پخپله ژبه ژباړي، نو ستونځې ځکه په کې راځي، چې د هغې بلې ژبې ژبلار سره بلد نه وي. لکه چې، که درې ژبی غواړي – من ترا دوست دارم – په پښتو ووایې نو د پښتو غونډله – ته و ماته ګران یې – نه وایي، هغه فارسي ټکي په ټکي پښتو ته اړوي او وایي، زه تاته دوست لرم.

د حالتونو پرتله کونه :
په الماني کې لرو: ich; mein; dich; dein
په پښتو کې انډول به نه لیکو، خو وبه لیکو: په پښتو کې لرو: ما، دما، په اینکلیتیکي ( په پې راتلونکي، ټینګار پرې شوي وی پسې تکیه) را، چې نورې برخې یې: (را (در، ور) = ( له ما، په ما، پرما، او نور). په لښتکي کې روښانه شوي.
د دې د نورو روښانونو لپاره دې د ما لیکنه په تاند کې ،، Klitikum = تکیه اړ نومځاینیوي ،، سرلیک لاندې او په دعوت خپرونه کې د ،، تکیه اړ نومځاینیوي ،، لاندې لوستلی شئ.
دما د کتابونو لیکنه له الماني ادبیاتو څخه ده، خو له هغې څخه تل نوي څه د پښتو لپاره زده کوم یا ښه یې: په پښتو کې میندم. هغه ستونځې، چې دا له څه

وخت څخه را په دې خوا مې پام ورته راګرځېدلی، هغه دا دی، چې پښتو یواځې پسځاینوي( Postpositions) لري.

دا چې د موږ ستونځې د پښتو ګرامر کې شته، د ما په اند هغه ډېرې یې په حالتونو کې دي. ما هم په دې ډېر کار کړی، خو زړه مې لا صبر نه کوي. دا به اوس په یوه لښتکي کې هم روښانه کړم. بیا به یې لاس ته راوړنه وړاندې کړم.

ما په تېرو لیکنو کې د اینکلتیکي نومځاینیوو په هکله څېړنه کړې وه او په مټه مې دا ښوولي وو، چې په پښتو کې یواځې پسځاینیوي شته.

دا چې پښتو یواځې پسې ځاینیوي، لاندې لښتکی باسو:

| پروکلیتیکي نومځاینیوي | حالت اړوند نومځای نیوي | پسې ځای نیوي |
|---|---|---|
| را، در ، ور = | له ما، له تا، له هغه او.... | څخه، سره، کره، پسې،... |
| -- = | تر ما، تر تا، ... | پورې(۱) |
| -- = | پرما، پر تا. .. | پورې(۱)، باندې |
| -- = | په ما، په تا، په هغه،..... | کې |
| -- = | وما، وتا، وهغه.. | ته |

یادونه: دا پروکلیتیکي د مخه اینکلیتیکي بللي وو.

که نور څه پورته لښتکي ته ورزیاتېدی شي، نو وړاندیز یې وکړی.

(۱) پورته لومړنی ،،پورې،، پوله په ګوته کوي او نه ور اخوا. لکه د سپین تر کور پورې.

په دویم ،،پورې،، کې دا د یوه څه پورې نخښتی څه دي. لکه پر کمیس پورې نخښتې خټې.

په لښتکي کې دوه څه د غور وړ دي:

لومړی: دلښتکي لومړۍ ولاړه لیکه له دویمې ولاړې لیکي سره برابر یا برابرارزښته دي،

له دې څخه دا غوره لاس ته راځي، چې یوه د دې لیکنې د اصلي موخې لاس ته راوړنه او هغه دا چې، له، تر، پر، په او نور خپلواکه پوهېدنه نه لري او یوازې د نوم یا نومځانیوي سره د اړونده پسې ځای نیوي سره غونډاله غوره او موخه ور رول لوبوي. دا نومونو او یا نومځانیونو سره یوځای د اړونده حالت هغه دا ورزیات نومځانیوی جوړوي یا د حالت اړوند نومځانیوی او که څنګه یې وبولو، دا نوم د مشورې دی.

دویم: د لښتکي په دریم ولاړه لیکه کې پسېځای نیوي دي. دلته مو وښول، چې پښتو یوازې پسې ځاینیوي لري او بس.

زه لږ ستړی شوم، خو که د خبرو درته برېښي، راخی، چې سره سم یې کړو او وړاندیزونه وکړو، چې څه په کې د کار دی.

ډاکتر ماخان میرزی شینواری

# کوم سم، ناسم او ولې؟

زه بېکاره یم( بېکاره نه یم، خو څه کار نه لرم)، له دې امله چې د اند سره ناسم څه وګورم، نو څه پرې لیکنې ته یې ځان اړ بولم.

لاندې پوښتنه کې سم او ناسم څنګه مومو؟

۱ – سپين  د طالبانو له بند تر ازاديدو وروسته

۲ - سپين د طالبانو له بند څخه د ازادېدو وروسته.

۳ - سپين د طالبانو د بند له ازادېدو څخه وروسته.

و ۱ – ته:  ناسم دی، ځکه چې: دلته له مورفېم ،،تر،، څخه څه نه پوهېدل کيږي او ،، تر ،،  پرته له نوم يا نومځاى نيوي، څه نه وايي يا څه ور څخه نه شي پوهېدل کېدی. په دې هکله مې ډېرې زياتې ليکنې کړي.

۲ - **سبين** د طالبانو له بند څخه، د ازادېدو وروسته.

و ۲ – ته: پرېکړه پسې: که ،،رووف د طالبانو له بند څخه وروسته،، وی، خو سمه  به وی. دلته نو بيا په

،، ...د ازادېدو وروسته،، ، دلته هم دا ،، د ،، د خاوندوالي مورفيم دی او په دې ويېنبرخه کې سم نه دی، دا څنګه بايد وي؟

له  ازادېدو څخه وروسته، دا بيا بېرته دا ليکنه ناسموي.

له دې امله ۲ – ناسم. نو

۳ - سبين د طالبانو د بند له ازادېدو څخه وروسته.

و ۳ – ته : ولي بايد سم وي:

ځکه چې دا بند د تالبانو دی او نور نو د بند ،،له ازادېدو څخه وروسته،، سم دی.

بله بېلګه:  د سپينغر د کور له لېدلو څخه وروسته

راځی، چې و دې ته نور هم په ګډه پام وکړو.

# په ژبه کې د سم او ناسم ښوونه

د م ک ملګرو څخه مې دا لاندې پوښتنه کړې وه:

روزه مو نېکمرغه.

کوم سم دی او ولې؟

۱ – یما، یتا، د هغه

۲ – زما، ستا، د هغه

۳ – د ما، د تا، د هغه

دلته یې ځواب

له ټولو راته ګرانو د م ک ملګرو لوي څښتن مو راته روغ لره. د دې به بخښنه کړئ، چې ستاسو یو اند او د ما بل اند دی.زه به دا خپل اند داسې روښانه کړم:

مورږ د یوڅه د روښانه کولو یا د سم ښولو لپاره دا دوه غوره دښوونې څه لرو.

ژبه پیداېښتي ده، نو ښوونه به یې په پیداېښتوالي کې څېړو

-- پیداېښتوالی

-- ټولیزوالی( که یو څه پیداېښتي نه وي). ځنې ښونې چې کیږي، د هغه غوښتوني د ټولیزوالي په بنسټ کیږي.

-- بل ډول ځوابونه یا ښوونې هم شته، چې هغه دلته بیا سیده او ناسیده ښوونې دي، چې ډېر نه پرېغږېږو.

-- پېداېښت کې تل پیداېښتي لارې شته، چې له هغو څخه هر څه روښانه کیږي. دا چې ژبه پیداېښت دی، نو هرو مرو باید د هر څه لپاره یوه لار ولري.

-- موږ خو دا درې ډوله کليوالي ويېنې لرو. دا خو درېواړه د پيداښتې ژبلارې له امله سمې نه وي او که غواړې معياري نه وي.

-- د ټول د م ک ملګرو ځوابونه ورځني وو او ځنې وايي، چې د پښتو ټولنې د پرېکړې سره سم دي.

-- دا چې زيات کسان دې دويم ته سم وايي، نو هرو مرو دې دا سم هم نه وي، که ناسمون يې ښودلکېدی شي.

-- دا چې کومه ټولنه پرېکړه کوي، دا به ووايم، چې دا هم لار نه ده. که ژبه پيداښت وي، نو بايد د سمون لپاره يې پيداښتي لارې شته وي.

-- غواړم دا وښايم، چې دريم سم او ژبلاريز دی. ولې؟

-- موږ پوهيږو، چې ،، د،، د خاوندوالي يا اړوندوالي مورفيم دی، نو له دې امله دريم ژيبلاريز سم دی.

-- ټوليزوالی: د دې دليل راوړل نور اړيين نه دې، خو په زياتو پوهنو کې دا هم د غوره دلايلو څخه راوړل کيږ، چې د پيداښت سره همغږی دی. نو که داسې وي، دا د ،، د ،، خاوندوالي مورفيم له امله دا ټوليز هم دی او په ټولو کې دا ګډ هم دی.

-- يوه ښوونه يا يو دليل تر هغې پورې سم دی، تر څو يې چې ناسموالی يا په بل ډول مخامخوالی نه وي ښوول شوی. دا پوهنيزې لارې چارې دي. له دې همداسې پوهيږو.

رابه شو اوس سيده ناسيده ښوونو ته.

-- سيده ښوونه: ۳ ــم سم دی. دا به ښايو. ومو ښوول، چې ۳ ــم ځواب دپيداښت سره سم دی او همداسې ټوليز دی

-- ناسيده ښوونه. که موږ وښايو چې ۳ - م ناسم دی، نو بايد ۱ ــ م يا ۲ ــم سم وي.

دا د پورته دواړو پیداښتي او ټولیزوالي ښوونو سره مخامخوالی دی، نو دا ناسم دی او ۲ – سم.

دلته مې تاسو لږ د شمېرپوهنې ښونو سره هم ستړي کړی.

هیله ده، چې مرسته وکړی، چې یوې لاس ته راوړنې ته راشو.

دلته دې بیا هم رېکتوس او اوبلیکوس ته پام وي او یو بل

اینکلیتیکي نومځاینیوي:

پیل یادونه: د دې سرلیک لاندې مې اینکلیتیکي او پروکلیتیکي یو ځای راوړي، چې په پیل کې مې لا نه وو میندلي. بل ځای کې مې سم لیکلي) د پښتو ژبلار حالتونو کې بل ډول یا اینکلیتیکي نومځاینیوي هم غوره رول لوبوي، چې دلته به یې وڅېړو.

پېژند: اینکلیتیکي نومځای نیوی یا پسې تړلې یا نښتي نومځاینیوي

-- مې، مو ، دې ، یې او

همداسې

-- را، ور، در دي، چې په دې توګه کارول کیږي:

مې، مو، وې، یې په ولاړ یا کړوني حالت کې

-- کتاب مې(مو، دې، یې) واخست

په ولاړ نه اینلیتیکي حالت کې

-- ما(تا، هغه ....) کتاب واحست

په پراته یا د خاوندوالي حالت کې

-- کتاب مې( دې، مو، یې) شین رنګ لري

په خاوندوالي نه اینکلیتیکي حالت کې:

د ما ( د تا، د هغه....) کتاب شین رنګ لري.

یادونه: له پورته بېلګو څخه راته جوتیږي، چې ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دی.

په پراته حالت کښې

پروکلیتیکي نومځاینیوي بولو: دا نومځاینیوي را، در، ور

-- را(در، ور) څخه(سره،کره، کې، باندې، پورې، ته)

په نه اینکلیتیکي - یا دا اوس په پروکلیتیکي نومځاینیوو په بنسټ دې حالت کې لرو:

-- له ما ( له تا، له هغه.... ) څخه (سره، کره)

-- پر ما ( پرتا، پرهغه،...) باندې باور وکړه.....؟ ...

-- تر ما ( تر تا، ترهغه،...) پورې ځان راورسوه....؟ حالتونه bis zu mir

-- پر ما پورې خاورې نخښتي . .....؟.... auf mich

-- پر ما باندې

-- پر ما پسې

-- په ما(په تا، په هغه.....) کښې .

یادونه: په پورته دوه غونډلو کې دا،، پورې،، پسبځاینیوی د ،، تر،، او ،،په،، سره راغلی. دلته یې نو توپیر باید وي او هغه څه دی؟ که په الماني یې واړوو، نو داپه بیلو حالتونو کې راځي.

همداسې ،، په ... پورې،، او ،، په ... کې،، دا دې هم سره توپیر شي، خو د دوي توپیر داسې دی، لکه،، د له...څخه، -... سره آو ...،،

یادونه: دا،، تر،، د موږ ژبپوهان او لیکوالات ډېر ناسم کاروي. دا بلځای کښې ناسم دی.

-- وما(وتا، وهغه،...) ته. ومخ ته. و شا ته.

یادونه: له پورته څخه دا راته روښانه یا جوتیږي، چې له، په، پر، و، تر په ډول جونونه یا کارونه یا څه ور څخه پوهېدنه نه لري او د اړونده حالتونو مورفېمونه دي.

د را، در، ور مې بیا خوب په لغته وواهه:

لرو: له کړنوییونو سره: اخستل، وړل: را (در، ور) یو څه واخسته(ونیوه، پورته کړل،) همداسې را-،در-،وروړل، - د کړنویي له نورو بدلونونو سره - او داسې نور هم.

پام: په پروت حالت کې دا کړنویي ،،وړل،، یو لوریزوال کړنویي دی او چېرته چې وړل کیږي یو ټاکلی ځای دلته، دغلته او هلته یا یو ټاکلی چېرته په نخښه کوي.

-- که پوښتنه کړو، نو: چېرته وړې؟

که پوښتنه وکړو، چې: چا کتاب راواخسته، نو ځوابې

-- ما-،تا-،... هغه کتاب راواخسته

یادونه یا پام: دلته دې په ټول ګرامري اړوندوالي فکر وشي. که نومونه، نومځاینیوي یا لنډ کړوني هم ورسره وي، دا را، در، ور ورسره راځي.

-- په دې هم پام وشي، چې دا څه ډول کړنوییونو سره راځي.

-- له دې کړنوییونو سره حالت کړونی دی، چې ما، تا ...او همداسې مې، دې، یې کتاب را-، در- ، ورواخست، دروورِ.

ستونځې: په کومه ژبلاریزه ډله کښې راځي او ولې:

-- کتاب مې واخست

-- کتاب مې را(در، ور) واخست.

-- ما کتاب را(در، ور) واخست.

-- ما کتاب وتا(وما، و هغه) ته واخست.

-- ما کتاب وتا(وما، و هغه) ته را(در، ور) واخست.

نه پوهېږم، چې په هکله یې څه لیکل شوي او که؟ که وي او راسره ګډ مو کړل، نو ډېره نېکي به مو وي.

د ما په اند به دا را-، در-، وراخستل به د ورسره ویلې شو یا اینکلیتیکي نومځاینیو سره خپلواک کړنوییونه جوړوي.دا د ژبې سره مرسته اړیینه راته برېښي. که کار پرې شوې وي، هیله ده راسره ګډ یې کړي.

که ولرو: دما( د تا، د هغه...) لپاره؟؟؟؟؟؟

دلته یو ډول ستونځې شته: که دا کوم حالت وي یا حالت وي، نو له دې سره دا اینکلیتیکي نومځاینیوي نه راځي او که په الماني انډول ولیکو، ټیک داسې ده: für mich, für mein Herz او دا په الماني کې د اکوزاتیو حالت یاځنګه والی دی.نور یې: auf mich, auf mein Kopf او نور. پښتو یې : پر ما

باندې، د ما پر سرباندې.پر سر باندې، پرميز باندې ، د ميز پرسر باندې... ګورۍ.

د الماني غونډلې د الماني په څلورم يا اکوزاتيو حالتکي، خو د پښتو غونډلي د خاوندوالي په حالت کې. د ژبو ژبلاريز توپير هم پيداېښتي دی.

د پښتو ستونځې او ستونځوبي

د پښتو ستونځې چېرته دي؟

د پښتو ستونځې د نورو په څنګ کې ( ،،ترځنګ،، ناسم دی) د مور. د دباندنيو ژبو څخه ......رانيونه کې

--- دا زياتې ستونځې په حالتونو او پسې ځاينييو کې ( وبه ګورو، چې پښتو يواځې پسېځاينيوي لري).

ستونځوبي يې په دې کې دي، چې مور. بايدله باندنيو ژبو څخه د لارو ميندلو په هکله ګټه پورته کړو، خو د خپلې ژبې ژبلارې د لاري په بنسټ بيا خپلې ستونځ اوبی کړو.

هغه سترې برخې، چې د ما په اند مو دستونځو سره مخامخ کوي، يوه يې حالتونه دي او بل مخ-،پسې – يا سنترځای نيوي، چې وبه ګورو مور. يواځې پسې ځاينيوي لرو او بس. دريم يې کېډی مخترې او ورسترې ياپسېترې وي، چې زه ډېر څه په کې نه لرم.

دا چې زه په الماني پوهېږم او درې، نو داسې لر. به بيا پښتو له دې ژبو سره پرتله کوم او په متې به يې خپلې ژبې ته سم څه په خپله ژبه کي لټوو او دا چې ژبې پيداېښتي دي، نو هرو مرو د هرې ژبې انډول په هغه خپله لار يا ژبلار شته. په دې هکله مې پوره ليکنې کړي، خو بيا هم:

لومړی: په لومړي پل کې به د الماني حالتونو ته پام راوګرځوو: په الماني کې څلور حالتونه ياڅنګوالي شته، چې بې له شننې او يواځې بېلګې ورکوني سره به بسيا ومنو.

۱ : نوميناتيو: زه راغلم. زه خورم.

په نوميناتيو يا نوميز يا کړوني غونډلو کې مو دوه ډوله – وخت اړوند- ؟؟؟؟ کړوني زه او ما سره بدلیږي. کړنبدلونونه لرو.

-- هغه چې دا نوميناتيو زه او ما يي په اوس او تېر مهال بدلیږي: دا هغه وييونه دې چې ته يو څه کوې او پرېکړوني ( او که نه کړونى؟؟) ته اړتيا لري يا پرېکړونى لري.

زه ډوډۍ خورم. ما ډوډۍ وخوړه.

زه لرګی رااخلم. ما لرګی راواخست.

زه لرګی وهم. ما لرګی وواهه.

-- هغه چې په نوميناتيو غونډلو کې يې زه په ما نه بدلیږي: هغه غونډلې چې نوميز کړوني ته اړتيا نه لري يا پرېکړونى نه لري. ؟؟؟ ترانزيتيو او اينترانزيتيو،، ؟؟؟ کې دې پام وشي؟؟؟

-- زه راځم، زه راغلم.

-- زه ودرېږم. زه ودرېدم.

۲ – پرېکړونى: دا په يو څه يا چا څه کيږي..................

---

مرسته !!!

--- په را( در ور) څخه(سره، کره، پورې، ته، کې، باندې...) کې دا را، در، ور اينکليتيکي نومځاينيوي دي، چې د پروت حالت يوه حالت په نخښه کوي او دا ټول د الماني ژبې داتيو حالت ته ورته دي.

--- په تلل کې، که د تلل په ځاى راتلل وليکو، نو ليکو چې: زه راغلم، ته راغلې او هغه راغی،...

ګورو چې دلته –غلم،--غلي،--غلې او همداسې را، در، ور په دې وييونو کې څه پوهېدنه نه لري، نو لاس ته راوړنه به دا وي، چې دوی يو د بل مختړي او ورسترړي دي يا به دا ووايو، چې دا راتلل، ... يو خپلواک کړنوی دی او دا راغلم او نور يې بدلونونه دي، نو له دې څخه بايد داسې وپوهيږو، چې دا بايد د هغه حالت د را، در ، ور سره بدل نه شي.

دلته دې ګران ژبپوهان او نور مينه وال مرسته وکړي، چې همداسې يا بل ډول بايد و ښوول شي يا ونومول شي.

پروت حالت

په پښتو کې اوبليکوس – يا پروت حالت لرو، کله چې نوم او نومځاينيوی سره اړونده ادپوزېشن ـ ( که پسېځاينيوی ياپوستپوزېشن) ولري.

دا پېژند چې اوبليکوس اړوند ادپوزېشن( مخځاينيوی، سنترپوزېشن او پوستپوزېشن) ولري، خو د ما د څېړنو له مخې پښتو يواځې د اړونده اوبليکوس حالت لپاره يواځې پوستپوزېشن يا پسېځاينيوي لري.

د دباندنيو ژبو څخه داسې شنني لرو، چې نومويي اوبليک حالت کې دی، که اوړوند يې يو ادپوزېشن ځای شوی وي.

دلته دې ته اړتيا شته، چې وګورو، اړونده حالتونه کوم ادپوزېښنونه لري.

---

ما په خپلو ليکنو کې دا ښوولي، چې موږ د اوبليکوس يا پروت حالت کې يواځې پسېځاينيوي لرو.

د دې ښوونو له مخې، چې پښتو ژبه ادپوزېشنونه له ډلې څخه يې سنترپوزېشنونه ولري، نو موږ به په لاندې غونډلو کې

له ځلمي څخه (سره،کره)

تر تا پورې

په کور کې

اونورو

که ولرو: له ...څخه(سره، کره) ، په... کې. تر... پورې سنترپوزېشونه وي، حو دا مختړي يې د نومويونو اړونده مورفيمونه دي، چې خپلواک څه ترې نه پوهېدل کيږ. او دا د نومويونو پسې چې راځي، پوستپوزېشنونه دي.

مختړي، وروستړي، سربل او اوستربل( زه په رښتيا نه پرېپوهيږم)

## غوره ستونځې

په پښتو ژبلار - ژبه کې دموږ غوره ستونځې او د ټولو ژبپوهانو، ژبپوهاندانو، ژبمينه والو او ليکونکو ستونځې څه – او کومې دي؟

دا ټولې ستونځې، چې بنستيزې دي او تراوسه ورته چا پام نه دی کړی، هغه حالتونه يا څنګه والی او کهغواړي اړيکوييزې ستونځې دي، چې په پښتو کې نه – نه بشپړې څېړل شوي او يا نه سم ترېپوهېدلي. دامې زياتې روښانه کړي او اوس به يې هم داسې لنډې په ګوته کړم.

د ما مېډنې: په لومړي سر کې مې دې ته پام شو، چې د پښتو په حالتونو کې موږ يواځې پسېځاينيوي يا پوستپوزېشنونه لر. اوس مې د لومړي ځل او لومړي کس په څېر دې ته هم فکر شو، چې پښتو يواځې دا داسې وروستړي يا پسې تړلي يا نښلول شوي لري، خو مختړي هم نه لري. دا خو د ما له لورې داسې لږ زياتی هم برېښي، خو داسې ده.

لکه – وال: ليکوال، غروال، کوتوال او همداسې. ليوالتيا، زړورتيا، سپينوالی، توروالی. دا چې کوم يې له کومو ژبتوکو سره راځي، هغې ته دې ګرانلوستونکي هم پام وکړي او زه به يې هم وليکم.

## د پښتو څنګه والي، پېر يا حالت ته د مشورې لپاره.

دا څنګه والي (پېرونه،حالتونه) د پوښتنو په مرسته په لاندې توګه روښانوو:

١ – نوميز څنګه والی:(څوک، چا )، (څه)

۲ – د خاوندوالي څنګه والی: ( د چا، د څه)

۳ - داتيو څنګه والی: ا - (له چا) ، ( له څه)،ب - (وچا)،(وڅه) پ – ( په چا، په څه)، ت - ( پر چا، پرڅه)....

دلته دې پام او خبرې پرې وشي، چې دا څنګه ونومو، يا نومول شي( كه وي) . دې نورو کې ګومان مې دی- ستونځې نه شته.

۴ – اكوزاتيو څنګه والی: ( چا، څوک، څه)

ګورو، چې ۱ – او ۴ – يو ډول دي، څو ۱ – د كړوني په څنګه والي او ۴ – د پرېكړوني يا نه كړوني په څنګه والي کې دی.

پوښتنغونډاله جوړوو:

څوک له چا سره د چا له كور څخه د چا وكور ته لاړ او په څه کې پر څه باندې څه يې د څه پرسر كېښود؟

(سپين) «۱» (له تور)«۲» سره (د ټور) «۳» (له كور)«۴» څخه (د ځلمې)«۵» (وكور) «۶»ته ولاړ او (په كوټه)«۷» کې ( پرمېز ) «۸» باندې (كتاب)«۹» يې د چوكی ( پرسر)«۱۰» باندئ كېښود.

د الماني ژبلار له مخې به «۱» نوميز، «۲»، «۳»،«۴»،«۵»، «۷»،«۶»،«۸»او«۱۰» داتيو، «۳»،«۵» واكوالي او «۹» اكوزاتيو حالتويونه يا پېرونه او كه غواړی حالتنه دي.

دا پورته پېرونه يا حالتنه په پښتو: ۱ – په پښتو کې ركتوس يا كړونی حالت دی او دا نور ټول اوبليكوس يا پراته، ژوړند يا ښهيې: نه كړونې حالتونه دي او نور.

كه ټول سره مرسته وكړو او دا پورته سره همغږيز كړو، نو زما په اند به مو د پښتو ژبې يو څه ستونځې اوبی كړې وي.

یادونه: ما چې دا پورته د حالت لپاره څنګه والی لیکلی، باور وکړی، چې دا حالت هم راته پېچلی برېښي، چې له عربي به سم وي او که نه؟

پرته له دې په دې پېر هم نه پوهېږم، چې دا به حالت ته وایې او که څنګه؟

که دې کې هم هر څنګه پرېکړه وي یا وه، نو یو کار به مو سرته رسولی وي. هیله ده چې اندونه سره ګډ کړو.

د ما برېښنا پته: smakhan1946@gmail.com

# سنترپوزېشن؟؟

ما په خپلو لیکنو کې په ځانګړې توګه د حالتون او اړیکویونو له امله، چې په هکله مې یې څولیکنې کړې، پوره ناسمونونه هم کړي، خو دا هغه ناسمونونه دي او ګومان مې دئ دا اوس به مې لږ. د واک لاندې راوستې وي او سم به وي او دا لا تراوسه پورې د موږ ژبپوهانو همهغسې لیکې، سره همغږي شوي نه یو، خو بیا هم د ژبپوهانو مرستې ته اړتیا شته.

زه تر اوسه پورې په دې اند وم، چې ګوندې دا لاندې چې څه لیکم، سرکوم پوزېشنونه یا اړیکویونه به وي، خو راته چوته شوه چې داسې نه ده. وهر یوه ته به پام وکړو، خو دا ولې؟

زه چې څه د پښتو ګرامر په هکله لیکم، هغه د الماني په مرسته دي او نه پوهېږم، چې په پښتو کې به دا هم په دې غزونه لیکلي او څېړل شوي وي، که نه؟

ما په خپلو پخوانیو لیکنو کې هم دا هر څه د وړاندیز په توګه لیکلي دي، خو دا چې په پښتو کې یې په هکله ماته څه نه دي څرګند او یا نه شته، نو تېروتنې به په کې وي او دانو یواځې یو کس شاید ونه شي کړی، مرستې ته اړتیاشته.

که تاسو د ځنګه والي یا حالتون او همداسې د پرې – پوست – سرکومپوزېشن په هکله پوره څه لرئ، نو هیله ده، چې دابه راته زما په برېښنا پته راولېږئ، چې زه به مو د منني پوره وړی وم.

## کابل ته که و کابل ته

پوښتنه وه: ،،کابل ته ورسېدم،، او که ،،وکابل ته ورپسېدم،، کې

کوم سم دی؟

یادونه: که له دې څخه د مخه پهپښتو حالتونو پ،هېدل، نو دې پوښتنې ته اړتیانه پېښېدله، ځکه هلته بهپوهېدلی وی، چې دا مورفیم و د نومځاینیوي دنده بدلوي او دانومځاینیوی د کړوني له حالت څخه د نه کړوني و حالت ته راولي، خو بیا هم لوستل یې راتهګټور برېښي.

ډېرو ګرانو! باور وکړئ، چې ستاسو وخت لکه ځنګه چې دما وخت ډېر ارزښت راته لري او هېڅ وخت به ستاسو وخت له بېځایه پوښتنو سره تېر نه کړم.

ملګرو پوهېږم، چې دا پوښتنه به زیاتو او په ځانګړې توګه پرته له کندهار څخه د نورو ځایونواوسېدنکو ته آن چې لږ ناروا وبرېښي. موږ ورسره سوچ، بوچ نابلد یو. دا هم - لاتراوسه په دې اند یم- چې د لومړي ځل لپاره د ما ژبلاریزه میندنه ده، نو له دې امله یې بیا بیا د ما دا ډول لیکنې د ګرانو لوستونکو سره ګډوم.

کوم سم دی؟

،، وکندهار ته ورسېدم،، سم دی.

ولې؟

موږ په پښتو کې دوه ډوله حالتونه لرو.

لومړی-- رېکتوس یا ولاړ حالت او یا کړونی حالت دی، پوښتنې یې:څوک لو کوي او چالو وکړ.

دویم-- اوبلیکوس، چې ما پروت حالت بللی، چې کړی شو زوړند یا مائل- یا نه کړنی حالت یې هم وبولو. هغه ټول نور حالتونه خوندي لري، چې پښتو کې یې لرو او په خواشینۍ باید ووایم، چې نومونه یې نه شم ایښولی او غواړم هم نه، خو داذا لاندې یې د الماني داتیو حالت ته ورته دي، خو هرو مرو د پښتو او په ډېرو لارو، چې غوره یې دا لاندې دي:

یو اځې بېلګې یې راوړم: له کابل څخه(سره، کره)، پرکابل باندې، په کابل کې، تر کابل پورې، وکابل ته او نور.

په پورته کې ،، له، پر، په، تر ،و ، او نور مورفېمونه دي، چې خپلواک څه نه وایې یا څه ترې نه پوهېدل کیږي، خو د نومونو او نومځاینیوو سره یوځای حالتونه جوړوي او

،، څخه ، سره، کره ، کې، باندې، پورې، ته او نور،، پسې ځای نیوي دي، نو په پورته کې ،، کابل ته،، به د دې ژبلاریزه ښوونې په بنسټ رېکتوس یا ولاړ حالت وي، له دې څخه دا پوهېږو چې څه به کوي، خو څه نه کوي، نو له دې امله ،، و ،، باید ورسره وي، چې ،، وما،، یا ،، وکابل،، اوبلیکوس یا پروت حالت دی، چې له دې امله ژبلاریز سم دی. په هکله یې د ما ،، د پښتو ژبلار( د ښوونځي لپاره ،، کتاب کې هم شته.

دا چې څوک یو څه څنګه بولي یا وایي، نو غوره نه ده. دا چې یو څه پوهنیز څنګه دی داغوره.

د پوهنی بنستیزه وینا: یو څه تر هغې پورې سم دي، تر څو یې چې چا مخامخوالی نه وي ښوولی. نو دا هم تر هغې پورې سم دی، تر څو پورې یې چې چا مخامخوالی پوهنیز نه وي ښوولی.

ډېره بخښنه به راته کوي، چې په دې روژه کې مو ستړي کوم. لوي څښتنم راتهروغ لره او راڅخهزړهبدپ نه شی. د کمنتونو مو ډېره مننه

لنډ: د روانونو لپاره څه غونډالې:

۱ - هغه زه ووهلم.

۲ – د هغه کور

۳ – ما وهغه ته کتاب ورکړ.

۴ – ما هغه ته کتاب ورکړ.

موږ دوه ګرامري حالتونه لرو:

یو: رېکتوس یا ولاړ حالت. دا کړونی حالت دی.

دویم: اوبلیکوس، چې ما پروت حالت بللی، خو کېدی شي زوړند حالت یا نور هم ښه، نه کړونی حالت هم وبلل شي.

روښانونه:

په ۱ – کې: هغه کړونی یا رېکتوس حالت دی او زه پرېکړونی یا اوبلیکوس حالت دی، چې په الماني کې دې ته اکوزاتیو حالت وایي.

په ۲ – کې: د هغه کور ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دی او ،، د هغه،، د خاوندوالي حالت اړونده نومځاینیوی ورسرهیې اړونده ،، ډډ ، دی. دا پروت – یا نه کړونی حالت دی.

په ۳ – کې: ،، ما ،، ولاړ یا کړونی حالت او ،، و ،، د اړونده حالت مورفېم او ،، وهغه،، اړونده حالت ته د نومځاینیوي په ځای دی.

دا پروت حالت دی.

په ۴ – کې: ،،هغه،، یواځې د کړوني او یا پرېکړوني لپاره په اړونده غونډاله کې راځي، چې له دې امله کلیوالي ویېنه او معیاري یې د ،، وهغه ،، سره ده.

پوهنیزه وینا: یو څه تر هغې پورې سم دي تر څو یې چې مخامخ شننیز نه وي ښودل شوي

## کازوس رېکتوس او کازوس اوبلیکوس

پیل یادونه: ما په ډېرواره حالتونه لیکلي، هغه هم په دې د پښتو حالتونو کې خوندي دي او د پښتو حالتونه له الماني څخه توپیر لري. ما پخپله ډېرې لیکنې په څلورو حالتونو کړي او اوس به دا په پښتو کې حالتونه وڅېړو:

په پښتو کې دوه حالتونه شتون لري. رکتوس او اوبلیکوس

Ca|sus rec|tus,د رکتوس – یا ولاړ حالات

ویي پېزند: ژبنیز نومیزNominativ ولاړ حالت کلیمې سرچینه: لاتین "casus rectus" ،،نبغ، ولاړ حالت یا څنګه والی،، ، همغه پرېپوهنیز یوناني "ptōsis orthē" مخ ته لرو.:

مخامخ ویي یېCasus obliquus اوبلیکوس حالت دی.

نومیز حالت رېکتوس حالت دی: دا کړونی حالت دی، چې له دې امله ولاړ حالت هم ورته ویل کیږي.

— په بنستيزه توګه دې ته مخامخ يا برعکس او دې نورو حالتونو ته کاسوس اوبليکوس دی، چې څنګيز، ننوتي، پروت، ... حالت دي.

(Casus obliquus (Deutsch

اوبليک څنګه والی:

ويی ترېپو هېدنه/ پېژند:

۱ – ژبنيز: نه ولاړ -، پروت –، ننوتی – ، وتلی او يا کوږ څنګه والی (حالت). له دې امله به بسيا وکړي، که پروت حالت يې وبولو.

اوبليکوس يا پروت څنګه والي دا لاندې څنګه والي خوندي لري:

بلواک څنګه والی: جينيتيو، داتيو، اکوزاتيو، ابلاتيو او دا اوس هم غړيز

د کليمې بنسټ: له لاتينبلواک حالت يا – څنګه والی، چې يوناني پوهېدنه يې هم همدا ده

بلواک کازوس، اوبليک کازوس، ناولاړ، زوړند يه پروت څنګه والی.

۱ – کازوس اوبليک جينيتيو، داتيو او اکوزاتيو دي. دا مې په بل ځای کې څېړلي، چې په پښتو کې نور څنګه والي هم شته، لوريز، چې وروسته پوره څېړل شوي دي، **د پوره ځرګندونې لپاره دې هلته وکتل شي.**

د نورو حالتونو لپاره مخ ته ځو:

يادونه: که دا لاندې بيا هم راغلي وي، لوستل يې بد نه دي.

Enklitische Pronominaاينکليتيکي نومځاينيوي.

اينکليتيکي نومځاينيوي يوه کيدنده لري، چې له يوه کړنوي سره ورزيات يا ورسره ونښلي يا ورسره ويلې شي. کړنوی + ځانيز پسې تړی. ډېر زيات د خبرو ژبه همداسې په شاعری کې منځ ته راځي. په ډېرو ليکنيزه ژبه کې ترې

ډېره کيږي يا دا د کړنوي سره يوځای په يو بل کې سره وېلې يا ولې شوي، چې يو نوی ويې منځ ته راوړي چې د دې ترنې سره پرېپوهېدنه هم پوره کوي.

د بېلګې په توګه: اينکليتيکي نومځاينيوي د يوه شي دنده لري، که دا يوه کړنوي سر ورزيات شي.

ګډوله کونه

– کړنويي + ځانيز پسېتړی په وېينژبه او ليکنژبه کې مخ ته راځي او همداسې بله برخه يې

– ځانيزمختړي نومځاينيوي يا اينکليتيکي نومځاينيوی + کړنوی، چې دا دواړه به لړ. د څېړنې لاندې ونيسو.

دا نومځاينيوي، نو څنګه روښانه کړو، چې کوم دي؟

که غواړې عکسونه درته ښايم. که غواړې وتا ته عکسونه ښايم.

دا نسبتي وی و پسې ځاينيوی ياپوستپوزېشن ،، ته،، ته يو اوبليک دئ. او د الماني داتيو څنګه والي ته انډول دئ او له دې سره د پوست پوزېشن په څير د موخه لور (چېرته) دنده لري. بيلګه: و کور ته ځم.

پرمېز(حالت) باندې (اړيکوی) د انګورو (خاوندوالی حالت) له جنډې ( حالت) څخه (اړيکوی) انګورو (نوم) له ځان(حالت) سره ( اړيکوی) وتا( حالت) ته (آړيکوی) دروړه.

ګورو، چې ټول اړيکويونه پسېځاينيوي يا پوستپوزېشنونه دي.

دا مې تر اوسه پورې سنترپوزېشنونه بلل، چې ناسم دي او دا پر، په او نور چې راځي، دا د حالتونو مورفېمونه دي، لکه ،،د،، د خاوندوالي مورفېم.

د اينکليتيکي نومځاينيوي څلور دندې: دې، مې، مو، يې....

دا څلورواړه په يوه ګډوله يا لړی څنګيزه غونډاله کې

زه دې دلته راوغوښتم، چې ته مې وليدې او هغه مو، چې وليده دايي وويل:

لوریز نومځاینیوي

لوریز نومځاینیوي: نومځاینیوي را، در، ور یوه لور غوره کوي، نو له دې امله لوریز نومځاینیوي.

لرو: - (را، در، ور) (سره،څخه،کره، ته، پورې، کې، باندې،...)

په پورته کې په لومړي نوکانو کې نومځاینیوي دي او په دویم کې اړیکویونه یا پسېځاینیوي دي، چې په نومځاینیوو پسې تړلي راځي. دا بیا داسې همم لیکلی شو:

له ما، له تا، له موږ،له هغه......سره(څخه، کره) ، وما ته، وتا ته، وهغه ته، پر میز باندې یاپر هغه باندې....په کور کې

—— داسې له یوه تورې جوړ نومځاینیوي شته، موږ چې یو څه کوو، په پای کې د هغه کړونې پسې نومځاینیوی( انکلېتیکي نومځاینیوي بلل کیږي( په لیکنه کې یې پېژند شته)) ورزیاتوو یاورسره نښلوو

بېلګې يې: ځم، ځو،ځې ، ځی، ځي( د دریم کس ن، ښ یو او ډېرو لپاره ).

دا یو وییېزې یا له یوه ویي جرړې پوره غونډالې دې.

—— له بلې لور له داسې کړونو سره دا را، در، ور نومځاینیوي مخ ته تړل کږي او کړنويي پسې هممهال دا د —م، -ې، -ئ او نور هم تړل کیږي او داسې یووویېزې پوره غونډالې جوړوي: درځم، راځې، ورځم او نور. دا به د روستاړو او مختاړ او – مشوره. څنګه ونوموو. دا لوریز نومځاینیوي، کړنويي سره د مخه تړلې او پسې تړلي یې دا اینکلییکتیکي نومځای نیوي دا یوه کړنوويي او دوه وو نومځاینیوو سره په ګډه یوه یوویېز هغونډاله جوړوي.

دې برخه کې هم نېمګرتیاوې شته، چې

یادونه: په دې هکله مې – د ما نوې میندنې کې- هم پوره لیکنه شته

ابلاتیو (Ablativ (Deutsch

ويي پېژند: لاتين ژبلار: ابلاتيو د پرېديکات نږدې پېژندنې ټاکلو په چوپړ کې دي. دا حالتونه ورکوي، چې د هغو لاندې کړنه کيږي. دا داسې کارول کيږي Ablativus instrumentalis اله ييز ابلاتيو: د پوښتنې په ځواب کې:،، له څه ياڅه شي سره،،؟ ، ،، د څه له لارې څخه،، ؟، ،، له چا سره يوځاى،،؟

Ablativus separativus – د بېلېدنې ابلاتيو: د بېلېدنې ابلاتيو پوښتنې ته دى، چې : له کومه څخه،،؟ ، ،، له څه څخه،،؟

Ablativus comparationis

د پرتله کونې ابلاتيو له و چا ته يا نسبت و چا ته سره

Ablativus limitationis

د کليمې د رابندونې ابلاتيو په پوښتنه،،په کومه اړيکه کې،،؟

Ablativus locativus

ځايټاکنيز ابلاتيو و پوښتنې ته ،، چېرته،،؟

Ablativus temporalis #

د مهالټاکنې ابلاتيو و پوښتنې ته ،، کله،،؟ ، د،، د کوم وخت په دننه کې،،؟

Ablativus mensurae

ست- يا ډېرى – يا څومره والي ورکړه، و پوښتنې ته ،، په څو،،؟

Ablativus qualitatis

د څنګه والي يا خوي ابلاتيو.

له ،، د ،، سره خاوندوالي جوړونه: دا ،، د ،، په ځنو ادبياتو کې د خاوندوالي مورفيم بلل کيږي او ځنې يې بيا په بلابېلو لاملونو د مخځاينيوى( پربپوزېشن) بولي، خو دا چې دا يو مورفيم دى او خپلواکه پرېپوهېدنه نه لري، نو دا د خاوندوالي مورفيم يې سم دى. بېلګه : د کور ښکلى باغ.

## Vokativ د غږ کولو حالت

په پښتو کې د غږکولو په حالت کې د ناغږیزو تورو پسې یوه ،، ه ،،
ترلکیږي( دا خو ځانله د دې سره نه دی، د نور لکه ی سره هم راځي) او نورو
ته دې یې په ګډه فکر وشي.

بېلګې: ورور، وروره،

سړی، سړیه

ملګری، (اې) ملګریه.

د ښځینه وو لپاره :

بېلګې: مور، مورې،

خور، خورې

د ډېر لباره په ټولیزهتوګه باور لري، چې غږیز/ ډېر = اوبلیک/ډېر

بېلګې: ګران ملګري، ګرانو ملګرو!
ښخې/ (اې) ښځو!

پسې نومځینیوي د خبرو دې، خو ما په دې هکله پوره لیکنې کړي، نورې نه
پرېکوم، خو ستاسو پام یواځې د ې ځنې ځانیزو نومځاینیوو ته رااړوم.

زه، ته، هغه، ما، تا، هغه، او نور

په دې ټولو حالتونو پوره خبرې شوي.

Demonstrativpronomina (اشاري نومځاینیوي)

اشاري نومځاینیوي ( رکتوس)

دا، دغه،

نور اشاري نومځاينيوي: هغومره، دغسی، داسی، داسی، همدا، همداسي، همدغسي ... دومره ، هومره، دومره...څومره داسی، داسی، همدا، همداسي، همدغسي دا، دغه،دغي،هغه،هغي

لوريز نومځاينيوي: د اړيکويونې سره دا لوريزې ټوټې د پوستپوزېښن د لوريزنومځانيوو کيږي. سره تړاو يا تړنه.

دا لوريزې ټوټې : را، در، ور دي، چې د پرېپوزېشن په څېر د اړيکويونو په څېر د کړنوييو سره نښلي يا ويلې کيږي. يو څو بېلګې...

د پوښتننومځاينيوي:

څوک، چا، څه، څو، څومره، کوم...څومه، څنګه، څرنګه

Indefinitpronomina ((ناتړلی نومځاينيوي

څوک،څه، څو، کوم، يو شی، يو څوک، يو چاته، د يوهچا، څومره، ځني، هر، ټول، نور، هېڅ

په ژبلار يا ګرامر کې ناتړلي ياخپلواک نومځاينيوي د نومځاينيو لاندېډله جوړوي(برخډله مې ليکله وه، خو د لاندېډلې او برخډلې په منځ کې مې توپير ته پام نه وو). د و ي دوي مو يوګونو يا افرادو ته پام اړوي، چې د هغوي ايدنتيتي له نږدې نه ده ټاکل شوې يا د ناټاکلې ګڼون ( تعداد) افرادو همداسي په افرادو ( يوګونو کسانو) باندې شتونوينا کوي.

Indefinitpronomen mit vorangestellten Wörtern

ناتړلي نومځاينيوي له و مخ ته تړلو وييونو سره:

هېڅ څوک، هرڅوک، لږڅه، يو څه ، يوڅوک

Unbestimmter Artikelناټاکلي پيژند نخښې (ن،ښ)

يادونه: دا د الماني ژبې يو ځانګړنه ده، په دا ناټاکلی ارتيکل نه شته.

١ – رکتوس: (ن،ښ)يو، يوه

۲ – اوبليکوس: ( ن،ښ) يوه، يوې

يادونه: ۱ – داپورته داسې برېښي، چې ګوندې د بېلګې په توګه يوسړی راغئ. يوه ښځه راغله او

۲ – يوه سړي وويل. يوې ښځې وويل.

دا دواړه حالتونه کړوني دي او د پښتو ژبلارې له مخې او د رکتوس او اوبليکوس د پېژند له مخې بايد رکتوس وي، نو اوبليکوس به يې څه وي؟

اوبليکوس: له يوه سړي. له يوې ښځې. دلته له د يوه مورفېم په څېر راغلی، يو پروت حالت دئ.

دا موضوع هم دما نوې مخامخونه ده. له دې د مخه ورسره نه وم مخامخ شوی، نو د څېړنې او د خبرو به پوره څه په کې وي.

موږ د نورو ژبو څخه ګټه اخلو، په زياتو ځايونو کې د نورو ژبو څخه ګټه اخستل کېدی شي، خو سره ورته ژبنيزې لارې سره نه لري.

په فارسي کې: مېرم.. او نور، مادرم، ...، او نور

په فارسي کې بيا خاوندوالي هغه نومونو لپاره، چې پای يې بېغږه توري وی، -م،-ت،-ش پسې تړلي او که پای يې غږلرونکي توري وي، نو بيا پسې -يم، -يت او –يش پسئ تړلي دي.

په پښتو کې: ځم، ځو، ځي، ځئ ... او ور خو موږ مې (دې، يې) په پښتو د کړنوي پسې، م،ې، ي تړلي او د خاوندوالي نومځاينيوو پسې بيا مې، دې، يې مو د مخه وڅېړل.

د دې يو لامل دا کېدی شي، چې په پښتو کې د کړنوي اخر کې دا ورسره زياتېدنه دکړنوي پسې تړلی يا سره ويلې شوې شته، خو د خاوندوالي نومځای نيوي خپلواک شته دئ او په درې کې دا نه شته يا داسې نه دي.

دا نور نومځاينيوي به د ځنګه والي يا حالت نومځاينيوي وبولو او ګورو، چې د اينکليتيکي نومځاينيوو سره توپير لری.

**زما (د ما، یما) پوښتنه**

دا پوښتنه مې د ملګرو څخه کړې وه.

لرو: یما، یموږ، یتا، یتاسو، زما، زموږ، ستا، ستاسو، دما، دموږ، د تا، دتاسو.

د ژبلار له لارې کوم سم دي او ولې؟

په هکله یا ځواب کې د ګرانو م ک ملګرو اندونو داسې لنډیز:

یو ا: ځنې په دې اند دي، چې ګوندې لیکنې ستونځمنوم او داسې دي د .... دي

یو: ځنو ته د داسې پوښتنو او لیکنو منځ ته رااچول نا اړین او ناسم برېښېده، ځکه چې دا لهجې یا ځای اړونده ویېنډولونه دي او درېواړه سم دي.

دوه: نورو هم دا ویل، چې دا لهجې دي او په ټولو ژبو کې شته.

درې: داسې اند هم شته وو، چې په دې پرېکړه شوې، چې زما، ستا، زموږ، ستاسو غوره شوي او بس.

یوه یادونه: زه له خپله ځان څخه څه نه جوړوم او نه لیکم، چې نورو ژبو یا لږترلږه الماني کې یې انډول نه وي. پیداښتي ژبې پوره دي او په ژبلار سنبال. پیداښتي ځانګړنې یې هم ځانګړې لارې لري.

دما د م ک ملګرو! دما هغې پوښتنې ته او د تاسو اندونو ته په درناوي داسې لیکم:

په ډېره خواشینۍ باید دا هم ووایم، چې زه یو لور او تاسو ټول بل لور یاستۍ او دا هم د ما د ملامتۍ لامل باید وي، خو زه چې هر څه راوړم، پوهنیز لامل به ورسره وي، دا سرسختي نه ده او که وي وبه ګورو، چې زما لیکنه بیا څنګه ناسمه په پوهنیزو ویناو یا لیکنو اباده ښولکیږي.

یادونه: زه پوهېږم، چې کوم منل شوی دی، خو په هغه پوهنیز او منلو لامل یې نه پوهېږم، چې کوم دی او ولې؟

ایا په دې ګوته پورته کیږي او که پوهنیز دلایل راوړل کیږي؟

که چا داراته ولیکل چې زما اند ناسم دئ او که نه نو څنګه؟

د پوهنې وزارت نصاب غونډه کې بله د منلشوي وي ببلګه، چې د عربي مایع لپاره یې انډول پیدا کاوه: زه په دې غونډه کې پخپله ناست وم او په دې پرېکړه کیده، چې د عربي مایع انډول پښتو باید ،،اوبلن،، ولیکو، چې دا ډېر ناسم دئ او دا یوائې او یوائې د واورو – چې اوبه شوې نه وي- خوي دئ او نه د نورو مایعاتو. که ما هرڅومره هڅې وکړې او دلایل مې راوړه، نه منل کېده، چې ګوندې زما یې له ژبې سره څه.

له دې داسې برېښي، چې ګوندې ژبه دمصلحت خبره ده او دا سمه خبره نه ده. ژبه له پیداېښته شته او پیداېښت مصلحت نه مني. په دې هکله مې لیکنه شته.

د موږ ژبې ته ډېر څه ناسم راننوتلي، چې یوائې دما ورته فکر شوی او په هکله مې یو کتاب لیکلی، چې د کتابتون.کوم درنې خپرونې کې خور دئ.

دژبې په هکله هلته زما د پښتو په هکله دا لاندې دوه کتابونه دکتلو دي او که څه په دلایلو ناسم وو، نو ماته چې هره جریمه ټاکئ منم یې، چې وړاندیز مې دئ د ناسمون په حالت کې ډاکتري راڅخه واخلئ، د ناسمو کړنو له امله او که نه، نو بیایې راسره ومنئ او د ستونځو ګاللو لپاره راته د پښتو ډاکتري راکړئ. د ما دا ټول کار لږ ترلږه د پنځلسو کالو کار دئ.

په هکله یې کتابونه:

لومړی: د پښتو ژبلار (ګرامر(

دویم: په پښتو کې ناسم ورځني شوي ویونه.

تاسوچې همدا شمېروني ته ورکړئ، داکتابونه درته درکوي او یایې کتابتون.کوم کې کتلی شئ.

اوس دا لاندې:

١ – زه به هیڅکله هم داسې څه ونه لیکم، چې یوه پوهنیزه موخه مې په کې نه وي او زما په اند یو سم ځواب ورته ونه لرو، ستاسو وخت بېځایه نه نیسم.

داسې نه وایم، چې ٪۹۵ کې، ځکه چې پوهنیزو خبرو کې یواځې سم او ناسم شته.

هغه بله غوره خبره چې په یاد یې راړم داده، چې ماهیڅکله داسې وی نه دی کارولی، چې ما جوړ کړی وي او موږ ورسره بلد نه یو، خو زما د لیکنو سره دا نابلدتیا شته، چې دباندني ویونه په کې یانه شته او یا ډېر کم دي، خو ناپوهوړ څه مې نه دي لیکلي.

۲ – ایا دا لهجه یا بلډول ویینه ده؟

نه! دا لهجه نه ده، چې په ۳ ـم کې ګوته ورته نیولشوې.

لهجه یا بلډول ویل نو څنګه وي؟

لهجه د یوه وي ځای اړوند بېلابېلو ویلو ته وایې، لکه: یما، یمو، یتا، یتو، یموږ، یمیږ. دلته دا ،، ږ ،، هم په درې ډوله ویل کیږي، چې دا هم بیا درې لهجې یا بېلابېلې ویینې دي او یا دا: موږ کور ته ځو. یو ډول ویینه او بله ډول ویینه یا لهجه بې: میږ کېږ ته ځي ( که دا مې سمه نه وي لیکلي، راته سمه یې کړی او ماته به بخښنه کوی.(

۳ – دا ما چې یې په هکله پوښتلي، دا د یوه څه لپاره درې بېلابېل ژبتوکي دي او دا د ملکیت یا خاوندوالي لپاره نومځاینیوي دي.

د خاوندوالي لپاره په الماني کې د لومړي کس لپاره mein د خاوندوالي پرونوم یانومځاینیوی دی او انګرېزي کې یې my دی.

د دې لپاره موږ په پښتو کې درې بېلابېل انډول کاروو، چې زما له انده یو یې باید سم وي، که څه هم پیداښت ناسم څه موږ ته نه راکوي، خو دا د وخت په تېرېدو سره بدلېدلی شي یا بدلیږي.

موږ وایو: لومړی کس: یما،زما،دما،

دویم کس: یتا، ستا، دتا

دریم کس:د هغه ( دهغې(

دا درې ډوله نومځای نیوي دلومړي او دویم کس لپاره دي او د دریم کس لپاره ځانله ،، د هغه( دهغې)،، دئ. زموږ د پښتو د پوهنتون استادانو هم په دې هکله لیکنې کړي، چې ما یې لیکنو ته په خپل ګرامر او بل کتاب کې د سمون په هکله لیکنې خورې کړي.

په پورته کې د دریم کس لپاره ،، د هغه (د هغې)،، کې ،، د،، د ،، هغه(هغې)،، سره د یوه وی په څېړ نه او بېل لیکلکېدی شي یا کیږي، نو دلته به ووایو، چې دا ،، د ،، د خاوندوالي مورفیم دئ او هغه پرونوم سره مل راځي.

د ،، د ،، تولیز کېدنه: که داسې ترې پوه شو، خو په دې لومړي او دویم کې به هم دا ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم وي او له دې امله به دا ،، د ،، له ،، ما او تا،، سره دما، دتا د ژبلار له لارې سم وي.

نو: له دې دریو څخه د ژبلار له لارې دما، دموږ، دتا د تاسو، د هغه(هغې)، هغوي سم دي او بس.

یادونه یا زماتېنګار: تر هغې، چې تاسو ګرانو لوستونکو دانه وي رد کړی یا د دې بل سموالی راته په دلایلو نه وي راښولی، نو دا به سم وي.

و ما ته به بخښنه کوی، که ستړي کوم مو.

یوه څنګیزه یادونه:

تراوسه پورې مې د خاوندوالي حالت کې یو پوستپوزېشن یا پسېځاینیوی ومیند او هغه ،، لپاره،، دی.

الماني او انګرېزي یې: für and for

پام: دا د ،، پار ،، لپاره یا په ځای نه دی، نو سره ګډ لیکل کیږي، ځکه یو وی دی او نه ګډوله.

د ،، پار ،، لپاره الماني او انګرېزي هغه غوره یې: because of and wegen

# په ژبلار کې نوې میندنې

ډاکتر ماخان میړی شینواری

پیل یادونه: ژبه پیداښت دی او څوک په پیداښت کې ګوتې نه شي وهلی او که دا کار وشي، نو هرومرو به ناسم وي. دا په دې ترېپوهېدنه، چې ما هم دلته له ځان څخه څه نه دي پیدا کړي یا جوړ کړي، هغه د پیداښت څخه راپیدا څه مې سره شنلي یا روښانه کړي، هیله ده چې سم به مې میندلي وي.

هیله ده، چې ویې لولی، مرسته وکړی، د پښتو ژبلارې د ودې لپاره.

په پوهنیزه څېړنه کې باید مخامخوالی نه وي، دا په دې پرېپوهېدنه چې باید رد نه شي.

نن د ۲۰۲۱ ز کال د مارچ ۳۱ ــم په درې بجو مې خوب کډه وکړه، د همغه خپل چرت له امله، خو دژبې په هکله مې میندنې وکړې، چې له دې امله ورته خوښ یم.

دا لیکنه په څو برخو وېشم او په لاندې توګه یې له تاسو سره ګډوم:

لومړی: د ماپخوانی اند د ځنو اړیکووینو یا که غواړی، د ادپوزېشنونو په هکله

دویم: څنګه والي یا حالتونه

دریم: دا اوس مې ورته د دې لیکنې په هکله پام شوي نومځاینیوي، یا مرستندوي نومځاینیوي او یایې که هرڅه د بللو وړاندیز کوي. دا دوه برخې لري.

څلورم: پښتو- لږ تر لږه په داتیو حالت کې – یواځې پوستپوزېشنونه (پسې ځاینیوي) لري.

پنځم: له الماني، انګرېزي څخه مو د ادپوزېشنونو په پخوانی بڼه ناسم پښتو ژباړلي دي

و لومړی ته: د ما پخوانی اند، چې دا ځنې ګډوله اړیکویونه به ګوندې سنترپوزېشنونه وي:

له....څخه (سره، کره)، په .... کې، پر...باندې، تر.... پورې، و ... ته او نور. ګومان مې دا هم وو، چې ګوندې پښتو به مخ ـ پسې – سنتر ځای نیوي ولري. په دې هکله مې لیکنې شته.

دابه په لیکنه کې روښانه شي.

دویم: څنګه والي یا حالتونه، چې لنډ یې بیا له تاسو سره ګډوم.

د پښتو څنګه والي، پېر یا حالت ته د مشورې لپاره.

د الماني ژبلار په مټه یا مرسته دا څنګه والي (پېرونه،حالتونه) د پوښتنو په مرسته په لاندې توګه روښانوو: دلته یواځې د پوښتنو له لارې.

۱ – نومیز څنګه والی:(څوک؟، چا؟ )، (څه؟)

۲ – د خاوندوالي څنګه والی: ( د چا؟، د څه؟)

۳ – داتیو څنګه والی: ا – (له چا؟) ، ( له څه؟)،ب – (وچا؟)،(وڅه؟) پ – (په چا؟)، ( په څه؟)، ت ـ (پرچا؟)،( پرڅه؟)، ټ – (ترچا؟)، ترڅه؟)،

دلته دې پام او خبرې پرې وشي، چې دا څنګه ونوموو، یا نومول شوي (که وي). دې نور کې- ګومان مې دی- ستونځې نه شته.

۴ – اکوزاتیو څنګه والی: (چا، څوک، څه)

ګورو، چې ۱ – او ۴ – یو ډول دي، ځو ۱ – د کړوني په څنګه والي او ۴ – د پرېکړوني یا نه کړوني په څنګه والي کې دی.

پوښتنغونډاله جوړوو:

څوک له چا سره د چا له کور څخه د چا وکور ته لاړ او په څه کې پر څه باندې څه یې د څه پرسر کېښود؟

داسې یې ځوابوو یا روښانه کوو:

(سپین) «۱» (له تور)«۲» سره (د تور) «۳» (له کور)«۴» څخه (د ځلمې)«۵» (وکور) «۶»ته لاړ او (په کوټه)«۷» کې (پرمېز) «۸» باندې (کتاب)«۹» يې د چوکۍ (پرسر)«۱۰» باندې کېښود.

د الماني ژبلار له مخې به «۱» نومیز، «۲»، «۳»،«۴»،«۵»، «۷»،«۶»،«۸»او«۱۰» داتيو، «۳»،«۵» واکوالي او «۹» اکوزاتیو حالتویونه یا پېرونه او که غواړئ ځنګه والي دي.

که ټول سره مرسته وکړو او دا پورته سره همغږیز کړو، نو زما په اند به مو د پښتو ژبې یو څه ستونځې اوبی کړې وي.

یادونه: ما چې دا پورته د حالت لپاره ځنګه والی لیکلی، باور وکړئ، چې دا حالت هم راته پېچلی برېښي، چې له عربي به سم وي او که نه؟

پرته له دې په دې پېړ هم نه پوهېږم، چې دا به حالت ته وایې او که ځنګه؟ که دې کې هم هر ځنګه پرېکړه وي یا وه، نو یو کار به مو سرته رسولی وي. هیله ده چې اندونه سره ګډ کړو.

اوس راځو:

و دریم ته: دا اوس مې ورته پام راګرځېدلی نومځاینیوي.

دا کوم دي؟ دا را، در، ور دي او مې، دې، يې، چې د کارونو يې بېلابېل ځایونه شته.

دا په دوه برخو وېشو

الف: الف ۱ – موږ په پښتو ژبه کې د خاوندوالي لپاره مرستندوي یا پوره او که هرځنګه يې بولې نومځای نیوي لرو:

مې، دې، يې. د دې ،،يې،، نارينه، ښځینه او ډېر هم همداسې دي او د ،،مې، دې ،، لپاره وایو چې ،، مو،، . پوښتنه دا ده چې به د دواړو لپاره وي او که د یوه لپاره.

دا هم په دوه ډوله کارول کیږي

الف ۱ ۱ – که ووایو: کور مې( دې، یې) سپین دی، نو پوهیږو، چې دا د خاوندوالي نومځای نیوي دي او که ووایو:

الف ۱ ۲ – که ووایو: کتاب مې (دې، یې) واخست، نو دلته دا بیا نومیز حالت دی. دلته بیا د کړوني په څېر رامنځ ته کیږي. هیله ده، چې په دې هکله به هم کران مینه وال مرسته وکړي.

الف ۲ – همداسې د داتیو لپاره هم دا لاندې نومځاینیوي لرو:

را، در، ور، چې زیات یې هم همداسې دي.

د دې لپاره به یې الماني او انګریزي انډول راوړ او وبه ګورو، چې دا هم همهغسې موخوردي
ب – څنګه والي یا حالتونه.

ب ۱ – د خاوندوالي څنګه والی یا حالت

انګرېزي نومځاینیوي د خاوندوالي لباره

His yuors my

الماني.............................

Sein dein mein

انډول پښتو یې د ساده یا نیم – یا خاوندوالي نومځای نیوو سره.

مې دې یې

پښتو پوره یا ورسره بلد نومځای نیوي

دما دتا د هغه... او نور

یادونه ښځینه او ډېر یې په پام کې نه دي نیول شوي.

(My (mein) house (Haus

کور مې

دماکور

ب ۲ – د داتیو ښنګه والی یا حالت

را – ، در- ، ور – (څخه، سره، کره، باندې، لاندې، کې، پورې، ته، ...)

که الماني ته مو پام راوګرځوو، نو دا پورته اړیکویونه ټول د داتیو په ښنګه والي کې دي.

له ما – ، له تا – له هغه (هغې) –( څخه، سره، کره) او

پر... باندې، پر (ما، تا، هغه...) باندې او پورې، په (ما، تا، هغه، ...) کې، تر ...پورې، و ... ته

( و....) په کندهارۍ ګړدود کې په روښانه توګه شته

کور مې، – دې، – یې،

انګرېزي نومځري د داتیو لپاره

him you me

الماي نومځري د لپاره

Ihm dir mir

پښتو نومځري نومځاینیوي) د داتیو لپاره

را در ور

دا پورته، مرستندوی (؟) نومځاینیوي د یو او ډېرو لپاره هم دي او ټیک همهغه د الماني او انګرېزي په څېر د داتیو حالت ښاییاو دا لاندې یې بل ډول دي.

له ما له تا له هغه او نور

د حالتونو څېړني له مخې پای لاس ته راړنه او ګومان مې دی، چې داپرېکړه- که راسره ومنل شوه – نوې وي.

څلورم: پښتو ژبه یواځې او یا لږ تر لږه د داتیو حالت کې یواځې پوستپوزېشنونه لري.

څه پوهېږو، چې دا پوستپوزېشنونه دي؟

دا له... (څخه، سره ...) او همداسې دا په... کې او پر...باندې، تر... پورې او نور سنترپوزېشنونه نه دي؟

هغه اړیکویونه چې د را، در، ور سره راځي، برېښي چې بوستپوزېشنونه دي.

نو دا له، په، تر او نور نو بیا کوم ژبني توکي یا ژبني څه دي او همداسې خپلواکه ترېپیوهېدنه هم نه لري. دابه روښانه کړو. دا یواځې د یوه نومځري سره پرېپیوّېدنهلري یا یې پهواک کې دي او بس.

که منلي مو وي، چې،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دئ او له مې، دې، یې څخه همداسې برېښي، نو دلته هم دا ،، له، په، پر، تر...، د داتیو حالت مورفېمونه دي او یا د ما، دتا، دهغه،... سره یوځای داتیو حالت ورکوي.

بل لامل یې دا دئ، چې دا له، .... په را، در، ور کې دننه یا خوندي دي.

یو څو بېلګې:

له ما(-تا،-هغه....) څخه ولاړ. را (در، ور) څخه ولاړ.

تر تا پورې درورسېد. درپورې در ورسېد.

یادونه: که دا سم وي، نو ګورو، چې تر موږ تل ناسم او زیات کاروو.

پنځم: له الماني، انګرېزي څخه مو د ادپوزېشنونو په پخوانۍ بڼه ناسم پښتو ژباړلي دي، داچې دا له، په، پر، و، تر نو په الماني او نګرېزي داسې نه دي؟

ما تراوسه پورې داسې انګېرل:

١ – له... څخه، یا ځانله لهvor; from

٢ – تر یا تر ...(پورې) bis; until

۳ – په... کې im, in

۴ – پر.... باندې یا پر auf, of

۵ – و....ته zu, to

۶ – له .. سره mit, with

د Vor, bis, in, auf, zu لپاره د پښتو دي:

څخه، پورې، کې، باندې، ته

یوه بېلګه: سپین راڅخه در روان شو او په لنډ وخت کې درپورې در رسيږي.

شپین له ما څخه و تا ته در روان شو او په لنډوخت کې به تر تاپورې ذرورسيږي.

دلته دې اړوند دې ته هم پام راواړل، درواړول، وروواړول شي، چې دلته لکه راغی، درغی، ورغي هم شته.

دا د څېړلو خوندیونه راته پیچلې، خو له ردولو یا مخامخوالي راته ازاده یا خپلواکه برېښي.

بیا لنډ: له، تر، په، پر، خپلواکه پرېپوهېدنې نه لري او د اړیکویونو یا پسبځاینیوو په واک کې دي..

هیله ده، چې پر دې باندې به یو له بل سره ګرمې خبرې ولرو.

# د پښتو حالتونو د ستونځوبیو بریا

څنګه دې لاس ته راوړنې ته بریالی شوم؟

ډېر خوښ یم او باوروکړی، چې ورته پام مې شو، چې دا کار خو د لومړي ځل لپاره د ما موندنه ده او د ډېرو کلونو د څېړنو لاس ته راوړنه ده، چې غونډه شپه مې خوب کډه وکړه. د ما ډېر څه، چې څه مې کړي یا څه باید وکړم، د

شپې په چرت يا د شپې په فکر ګړنجولو- مه راپورې خاندى، دا تکيه کلام لکه چې کارول کيږي- کې را پيدا کيږي. خو اجازه راکړي، چې له هر څه څخه د مخه يوه اړيينه يادونه وکړم.

اړيينه يادونه: باور وکړى، چې ځانپالى نه يم او بل د ليونتوب يا د زورواکوال ګومان مې هم په ځان نه راځي. دا بايد روښانه کړم، چې تر څو پورې دا د ما په پوهنه ولاړ ماته راپيدا اند چا په پوهنيزو دلايلو نه وي رد کړى، تر هغې پورې بايد سم وګڼل شي او که داسې وي، نو بيا موږ ټولو ته د دې بريا مبارکي وايم.

د ما په دې دعوه کې دوه موخې دي، چې د موږ ژبپوهان او نور ژبمينه وال دې ته راوپاريږي، د نورو پوهنيزه څېړنو په بنسټ يې رد کړي، چې دا به هم د ما د دعوه رد کول، خو بيا به هم دا هڅول د ما بريا وي.

د ما په څېړنو کې مې تل دې ته فکر شته، چې په پښتو کې حالتونه کم يا هېڅ نه دي څېړل شوي او که زه ورڅخه نا خبر يم، هغه به هم راميدان ته شي، چې زه به ورته خوښ او د دې بريا په څرګندولو به هم هېڅ زړه بدى نه شم.

دا فکر راته ودرېد، چې په همدې هکله مې د خپلو څېړنو يو کتاب برابراوه.

دې بريا ته مې نو څنګه لار ومينده؟

--- د حالتونو په څېړنو مې پيل وکړ، چې د ما په لومړنيو د پښتو ژبلار کتابونو کې هم شته.

لومړى مې دا حالتونه د الماني حالتونو په بنسټ وڅېړل، خو په پښتو کونه کې يې کوم ناسمون نه دى راغلى، خو دې څېړلو موخه وره او پايلاس ته راوړنه نه لروده. بيا مې ځنو ملګرو او ژبمينه والو دې ته پام راواړاوه، چې پښتو دوه حالتونه رېکتوس(ولاړ يا کړوني حالت) او اوبليکوس ( پروت يا نه کړون ى حالت) حالتونه دي.

هغه مې وڅېړل او په هکله مې د يوه ځوان پوه کامران منګل ليکنه يا ماته په کمنت وليکل، چې ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دی. پوه شوم، چې ،، د ،، پرته له نومويي‌ونو کومه خپلواکه پوهېدنه نه لري او همدلته مې ورته پام شو، چې ،، د ،، د خاوندوالي حالت يو مورفېم وي او خپلواکه پوهېدنه نه لري، نو دا له، په، پر، او.... هم بايد د کوم حالت يا حالتونو مورفېمونه وي او پرته له نومويي‌ونو څخه به خلپواکه پوهېدنه ونه لري. ګومان مې سم وو، خو پرې باوري کېدل يې راته ستونځمن وو، تر څو پورې چې د نور حالتونو په دې پوهېدنه چې لومړی د اينکليتيکي حالت ( پسې تکيه اړ حالت) سره مخ شوم. دې هم پوره روښانتيا ځکه نه شوه روا ستلی چې دې پسې او د مخه تکيه اړ هم ورسره يوځای څېړل شوي وو، خو همدلته راته د نومځاينيوو را، در، ور چې پروکليتيکي يا د مخه تکيه اړ نومځاينيوی دي په مرسته دا فکر پيدا شو چې دا له، په، پر، او نور هم لکه،، د،، د حالتونو مورفېمونه دي او دا د ( را،در، ور)( څخه، سره، کره، ته، پورې، کې او نور) کارونې له امله بيا د وخت په تېرېدو سره دا فکر هم راته پيداشو، چې پښتو نو يواځې پوستپوزېشنونه لري.

کله چې د کليتيکي ( تکيه اړ) کلمې سره مخامخ شوم، چې په دوه برخو اېنکليتيکي ( پسې تکيه اړ) او پروکليتيکي ( د مخه تکيه اړ) نومځاينيوي لري، نو دې پاي ته راورسېدم.

د دوه حالتونو کړوني او نه کړونو څخه بيا همدې څلورو حالتونو ته راغلم.

له دې څخه د مخه مې دا برياوې هم لوي څښتن په برخه کړي، چې له، پر، او نور – لکه دباندني او افغاني پښتوپوهان يې وايي- پرېپوزېشنونه نه دي او دا يواځې د حالتونو اړونده مورفېمونه دي، چې پرته له، نومويي‌ونو بله پوهېدنه نه لري او همداسې چې پښتو يواځې پوستپوزېشنونه لري او بس.

دا څه ميندنې چې دي، له نوم څخه يې پوهېږو، چې په ژبه کې شته څه دي، چې هغې ته مو بايد پام شوی وي.

یوه غوره خبره داده، چې د موږ تېرو ژبپوهانو خپلې ژبې ته په دې لنډ وخت کې ډېر کار کړی، ځکه چې پښتو ژبې ته د کار کړلو وخت ډېر لږ وو. ژبه مو داسې په ۱۹۳۲ ز ک کې داسې په نامه په رسمیت کې دننه شوه او بیا په ۱۹۶۴ ز ک کې - چې هلته د پښتو ټولنه هم جوړه وه - قانوني شوه، نو دا د یوې ژبې د ودې لپاره ډېر لږ وخت دی، چې د دوي ګار زه بیا بیا ستایم.

پای یادونه:

موږ باید ومنو چې:

لومړی: ژبه پیداښت دی او نه لکه چې وایو: قرارداد.

دویم: ژبه مو پنځه زره کلنه ځوانه ژبه ده. ځوانه په دې پوهېدنه چې نړدې له نوي کلونو څخه راپه دېځوا او له ۱۹۶۴ ز ک څخه وروسته یې هغه خپل رسمي ځای د قانون په څلوردیوالي کې نیولی، خو په عمل کې اوس لا هم ترې لرې ده، خو دا باید ووایم، چې وده یې پوره ښه ده.

دریم: زه چې ګورم، په ژبه کې مو هغه ډېرې ستونځې په حالتونو کې دي.

زه به له دې لیکنې سره و ځان ته دا اجازه ورکړم، چې دا د حالتونو ستونځې مې له ډېرو ستونځو څخه وروسته اوبی کړې دي.

-- په لیکنه کې تکرارا له دې امله هم راغلی، چې هره لیکنه په بېلا بېلو ورکړوحالتونو په هکله لیکل شوي، چې ماته بیا د داسې کار سمه راټولونه او ترتیبونه نه کېدونکې وبرېښېده. توان نور دومره نه دی.

-- د ټولو ژبو ژبلارې یو له بل سره پوره توپیر لري لکه چې ژبې سره توپیر لري، خو و خپلې ژبلار ته د نورو پرمختتللو ژبو څخه د نوې میندونو په څېړ ګټه اخستل کېدی شي او هلته یو نوي څه چې کتل کیږي موږ ته هم د خپلې ژبې د ودې لپاره یو فکر راکوي.

# د پښتو ژبلاریزه څېړنه کې مو څه ته باید پام وي؟

د ژبې معیاریکېدنه کله کېدونکې ده؟

د ژبې معیارېکېدنه هغه وخت کېدلی شي، چې زسمی وي او د دولت له خوا څخه یې ملتړ وشي.

مورږ د څه ډول لیکنو سره مخامخ کیږو او له هغه څخه باید څه ډول ګټه واکلو؟

مورږ لرو:

١ – تاریخي ژبه.

٢ – کلیوالي ژبه او

٣ – معیاري ژبه

د مورږ موخه دا ده چې ژبه مو هغه معیاري حالت غوره کړي، چې په خواشینۍ یې باید ووایم، چې لا تراوسه پورې نه ده معیاري شوې، لاملونه یې نه راوړم، خو که خبرو ته مو سره اړتیاوه، پرې غږېدلی شو.

---

په ژبه کې حزف او که حذف(ؤوبخښی، چې راته برګ نه شی، خو عربي مې – په خواشیی باید ووایم نه ده زده، خو هڅېږم، حپله موخه تر شونې پولې پورې په پښتو وییونو هم روښانه کړی شم - نه ده زده) یا پرېښودل او یا ورڅخه تېرېدل نه شته.

دا پرېښودونه پر څه پوهېدنه باندې ده؟

که همدا حالتونه راواخلو نو د ،، له کابل څخه و کور ته ځم. داسې لیکلی شو: د کابله کورته ځو. دلته که ،،څخه،، او ،، و ،، ونه لیکل شي، نو دا دې پروا ونه لري. دا کېدی شي پهډېرو ډولونو ولیکلی شو، خو دا دچا خوښهنه ده او نه لهډې امله، چې ګوندې سړی پر پوهېږي. ببرته همدې ته راځو، چې دا د ژبې

دسم ښوولو لپاره ژبلاریز لامل نه شي کېدی، پیداښتنیمګړتیاوي نه مني او ناسمې دي.

ژبه چې په معیاري توګه څنګه جوړه ده همهغسې جوړه ده او بدلون یې ناپیداښتي دی.

په ژبه کې تاریخي وییونه، دا په دې پوهېدنه، چې هغه او دغه لیکوال داسې یا هغسې لیکلي، نو باید سم وي ( په دې پوهېدنه، چې باید معیاري وي) او یا دا چې هغه او دغه ژبپوه لیکلي، نو باید همهغسې وي، دا دواړه د یوه څه لپاره د ښوولو بسیا نه کوي. دا چې ژبه نوې ده، نو ژبلار هم نوې څېړل کیږي او دا څېړنه د ژبې د جوړښت په بنسټ کیږي، چې هغه سمه څېره یې سمه ده یا هغه معیاري لیکندول یې باید سم وي او هغه سم دی.

خبرې نورې نه اوږدوم او په دې لار کې موږ ته د لا ډېرو برياوو په هیله.

# دوه پرانستي غوښتنلیکونه:

د کابل پوهنتون د پښتو پوهنځي و ریاست ته دوه پرانستی لیکونه!

ډېرو درنو د پوهنتونو د پښتو استادانو، د پوهنې وزارت او د علومو اکادمي استادانو ته یو پرانستی غوښتنلیک.

سر له نن څخه مې وړاندیز دی، چې دا د پښتو د حالتونو، چې په پښتو کې څو حالتونه دې د ښوونځي په درسي نصاب کې او همدا ډول په نورو پوهنیزو پروګرامونو کې ورګډ شي، چې ډېر اړیین دی:

موږ په پښتو کې څلور حالتونه لرو، چې دا لاندې دی:

لومړی: کړونی حالت: دا هغه حالت دی، چې څه په کې کیږي، او یا کړل کیږيي.

دا حالت د هر کس یا کسانو لپاره دوه نومځاینیوي لرې، چې زه، ته ، هغه .... او ما، تا، هغه ..... دي. زه به دلته همدا یو زه او ما سره دا څېړنه یابنه یې روښانه ونه و مخ ته بوزم.

۱لومړی – هغه کړنه چې کیږي، په هغې کې د وختونو په هکله نومځاینیوی نه بدلیږي.

لکه: زه پاڅېږم او زه پاڅېدم. دلته د اوس او د تېروخت نومځاینیوی همهغه،، زه ،، دی.

۲لومړی – دا هغه کړنه ده، چې پرېکړونی لري او له دې امله کړل کیږي. په دې حالت کې وخت اړوند نومځاینیوي بدلیږي او په لاندې ډول:

۲لومړی۱ – زه ډوډۍ خورم. د دې اوس وخت لپاره، چې ډوډۍ پرېکړونې ده.

۲لومړی۲ – ما ډوډۍ وخوړه. دا د تېر وخت لپاره د ،، زه ،، په ځای ،، ما ،، راځي، چې دلته هم ډوډۍ پرېکړونې ده.

دویم: د پرېکړوني حالت: په دې حالت کې پر یوه څه یا چا باندې څه کیږي یا کړل کیږي.

دا حالت هم د لومړي حالت په څېر دی، خو د نومځاینیوو دندې یې دلته بدلیږي.

۱دویم: دا هغه حالت دی، چې پرېکړونی یو کړونی لري.

۱دویم ۱ – ما غورځوي.

۱دویم ۲ - زه دې وغورځولم.

۲دویم ۱- زه غورځېږم او

۲ دویم ۲ - زه وغورځېدم.

دا به دواړه اوس په يوه غونډله کې يوځای راوړو، چې کړونی او پرېکړونی په يوځای وي.

ما ته غورځوې. زه تا وغورځولم.

دریم: خاوندوالي حالت: په دې حالت کې يو د ،، د ،، مورفېم، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري، د يوه نوموېي سره يوځای راځي او د يوه چا يا يوه څه خاوندوالی وښايي:

لکه: دما کور يا د سپين کور. دا د کور خاوندوالی د مورفېم،، د ،، سره څرګنديږي.

يادونه: له دې امله په زما، يما او د ما کې د ما سم او معياري دی.

نومونه: ،، د ،، د خاوندوالي حالت مورفېم.

څلورم: د پسېځاينيوو حالت:

په پښتو کې دا هغه د ژبې ستونځمنه برخه ده، خو که له دې سره سم کار و مخ ته بوتلل شي، کومې ستونځې نه زېږوي او راتلونکې ليکنې مو له ناسمونو ساتي.

دا به لومړی د کليتيکي دا په دې پوهېدنه، چې دلته د اينکليتيکي نومځاينييو سره وليکو:

يو - ( را، در، ور) ( څخه، سره، کره، کې، باندې، پورې، پورې، ته... که نور ومخ ته راغلل، نو لار يې همدا ده، کومې ستونځې نه لري).

دوه - دااوس د دې نور نومځاينيوو سره ليکو:

۱دوه - (له ما، له موږ، له تا، له تاسو....) ( څخه، سره، کره...)

۲دوه - (په ما، په موږ، په تا، په تاسو،...) کې

۳ دوه- ( پرما، پرتا، پر هغوي.... ) (باندې، پورې(۱))
۴ دوه - ( تر ما، تر تا، تر هغوي،....) پورې (۱)

۵ دوه - ( وتا، وما، و هغه،...) ته (۲)

......................

په پورته لیکنه( ۱ ) کې دا ویی ،، پورې،، دوه بېلابېلې پوهېدنې لري: دا د تر تا پورې کې دا ،، پورې،، پوله په ګوته کوي او دا بل ،، پور،، د یو څه پورې، چې یو څه نښتي وي، لکه د ما په کالیو پورې خټې وتپل شوې.

په ( ۲ ) کې ،، و ،، و پښتنو ته یا و ځنې پښتنو ته داسې نابلده برېښي، خو ګومان مې دی په کندهاري ویېنو کې شته، خو همداسې دی.

اوس یې لږ روښانونه.

په پورته لیکنه کې له، په، پر،تر، و او ... ټول د اړونده حالتونو مورفېمونه دي، چې یواځې د نومخاینیوو سره د اړونده پسېځاینیوي لپاره موخه ور او اړونده پوهېدنه لري.

دا داسې ده، چې هر یو له دې مورفېمونو یو ټاکلی یا څو ټاکلي پسېځاینیوي لري او په څټ هر یو پسېځاینیوي یو ټاکلی اړونده د حالتونو مورفېم لري.

لږ روښانونه: یو حالتمورفېم کېدی شي چې پسېځاینیوي ولري، خو هر پسېځاینیوی، ټیک یو د پسېځاینیوو حالتمورفېم لري.

د یوې پرېکړې لپاره: په پورته کې ګورو، چې دا له،په، تر، پر ... د حالتونو مورفېمونه دي او یواځې او یواځې په ،، دوه -،، کې د اړونده حالتونو سره راځي. ،،حالتمورفېمونه،، راته ښکلې نومونه برېښي. وبه لیکم، چې ښکلې نومونه ده او همداسې ده.

،، دوه-،، یواځې او یواځې یوه شمېرپوهنیزه کلمه ده، چې داسې ور څخه پوهېږو:

حالتمورفېم سره اړونده حالت پسېځاینیوي او یوه اړونده حالتپسېځاینیوي لپاره ټیک یو اړونده مورفېم شته یا تنظیم شوی، چې بل هر ډول راوړنه یې ناسمه ده.

په پوره پام: دا مو د ټولو ناسمونونو مخه نیسي، لکه ټرټولو.. . تر منخ ، تر څنګه، چې پورې ورسره نه وي او نور.

لنډ: له دې داسې پوهېږو، چې دا مورفېمونه– که حالت مورفېمونه یې وبولو ښه به وي- په بل ځای یا له نا اړونده نورو پسېځاینیوو سره راشي، نو هرو مرو به ناسم وي.

داسې لږ د الماني سره پرتله کونه:

په الماني ژبه کې د هر حالت لپاره ځانګړي نومځاینیوي شته. لکه

ich,mein,mir, mich

خو په پښتو کې موږ د دې بدلونونو لپاره اړونده مورفېمونه لرو، چې هر یو یې خپله ځانګړې روښانوندنده لري.

پای یادونه: الف- ،، د ،، د خاوندوالي حالت مورفېم دی.
ب - ،، له،، ، په ، ، پر ، تر، و ،... د (اړونده پسېځاینیو) د پسېځاینیوي حالت مورفېمونه دي او له دې څخه بله دنده نه لري او بله هر ډول کارونه یې ناسمه ده.

هیله ده، چې له دې سره به مو د پښتو ژبلارېزو ستونځوبیو لپاره یوه ښه روښانونه ګرانو لوستونکو ته وړاندې کړې وي.

که دا لیکنه درته د یوه پښتو ډاکتر لیکنه نه برېښي او له دې سره به یې ارزښت درته کم وبرېښي ( سمه خو ده) نو کړی چې و ماته د ما د ټولو پښتو لیکنو په چوپړ کې او په ځانګړې توګه د حالتونو مېندنې، چې د پښتو پهژبپ،هنه کې

یوه غوره میندنه ده یوه د پښتو دوکتورا هم راکړی. باور وکړی، چې د پښتو په تاریخ کې دومره کار او سم کار و پښتو ته شوی دی. ګوری، چې لیکنې مې په ربښتیا ځانګړې دي. ما د پښتو دوه ګرامرونه لیکلي، په پښتو کې نا سم راننباسل شوي ویونه او نورې لیکنې.

هیییییبیله ده، چې ځانپالنه یې ونه بولی، زه هر کار چې کوم، هغه د ما د ځان لپاره دی، چې ځان روغ وساتم او دا دنده یې له سره کړې. خپل کار په چا نه خرڅوم او نه په چا کوم احسان اچوم، خو له تاسو سره یې ګډونه اړیینه بولم، ګومان مې دی، چې و چا ته به په دې کې زیان هم نه وي، چې دا به بیا ناروا کار وي.

دا زه چې وړاندیز کوم، هرو مرو یوه ساده خبره نه ده. د دې باورې کېدو لپاره کېدی شي یو د پښتو پوهانو، د نورو پوهنو کسان او همداسې د علومو اکادمي له خوا څخه یو کنفرانس ترتیب شي، چې په هغه کې زه د خپل لیکلي وړاندیز سمون او اړیینوالی روښانه کړم، دا راته هرو مرو بربښي.

د دې حالتونو په څېړلو کې مې د نور په څنګ کې ډېر کلونه کار کړی، چې هغه په بربښنا کتابتونو کې هم شته – ketabton.com - او د اړتیاپه وخت کې یې زه ورلېږلی هم شم.

که تاسو په هکله د مالیکنې وګوری، نو درته روښانه به شي، چې ما و دې لار ته د رارسېدو لپاره څومره ستونځې ګاللې دي، خو لاس ته راوړنه یې پوره روښانه ده، چې پوره ورته خوښ یم.

د فوق العاده ډاکتری راکړې غوښتنلیک!

په پښتو د ما د سترې او بې بدیله بریالی څېړنې په هکله د دې کار لپاره د فوق العاده ډاکتری راکړې هیله!

د کابل پوهنتون د پښتو پوهنځي و درنو پوهاندانو او ټولو استادانو ته په درناوي!

لکه چې ګورئ، ما په دې اخرو نږدې اولس کلونو کې د پښتو په څېړنه کې زیات کار کړی او ډېر اثار یا لیکنې مې خورې کړي، چې دا ټولې د پښتو تاریخ په اوږدو کې لومړنۍ او یواځنۍ پوهنیز کار دي، د ژبې له لارې به دا هم ووایم، چې لیکنې مې رېښتیا هم پښتو او ځانګړې دي.

په دې ټولو لیکنو کې هغه ستر کار دا دی، چې ما د څېړنو په بنسټ ماته دا بریا هم په برخه شوې، ومومم، چې پښتو هم په خورا روښانه او پوهنوړه توګه څلور حالتونه لري، چې له دې سره مو له یوې خوا څخه د ژبې ستونځې له منځه ځي او له بلې خوا دا د ژبې د ژبلار او ژبپېهنې هغه غوره برخه او پوهنیزه بدایېه ده، چې نوره هم پوره کیږي.

دا د یوه مسلک په پوهنیزه څېړنه کې یو ډېر ستر کار دی، چې باید د پوهانو له خوا یې ستاینه او پېرزوینه وشي او هغه د یوې فوق العاده ډاکترۍ ورکړه ده.

دا هیله مې د ځان لپارهنه ده، دامې د کار د لاس ته راوړنې له المه ده، چې وخپلې ژبې ته په درنښتوګورو او نور پښتانه ژبمینه وال هم مینه ورسره پیدا کړي. که چیرې د ما غوښتنه نا سمه او ناروا وه، نو هغه په ډېرو ستونځو ولاس ته راوړې د شمېرپوهنې ډاکتري دې راڅخه واخستل شي او په مطبوعاتو کې دې هم په پراخه توګه د ماغندنه وشي.

ستاسو ماخان او په هرصورت بریالي اوسئ.

Smakhan1946@gmail.com

ډاکتر ماخان شینواری

# ابرګاتیو ژبې

د الماني اکوزاتيو او پښتو ابرکاتيو يو څو غونډلي د پښتو د اړونده غونډلو سره پرتله کونه يا  د غونډلو يو په بل اړونه، دا چي پښتو په کومه ژبډله پوري اړه لري، د ژبلار په مته پېژندل کيږي، نو ما مخه دې ته دومره غوره نه ورکاوه او ځان مي هم ورسرهبوختاوه، خو د ځنو م ک ملګرو د ګوتنيولو له امله مي دې ته هم داسي لږ پام راواړاوه او غواړم لږ کار په کي وکړم يا لنډ

دا چي ژبه په کومه ژبډله کي ده، دا د ژبي جوړښت څخه راباسل کيږي. موږ ته اړين دا دى، چي ژبلار مو له ژبي څخه سمه را وباسو، چي له امله د ما دا اخرنى ليکني و ماته ښي مناسب برېښي.

## **Ergativität**ابرګاتيويتي ( لاتين:  *erga* مخامخ، نږدې)

ابرګاتيويتي يا لنډ ابرګاتيو په ژبپوهنه کي د غونډالبرخو حالت په نخښه ونو سيستم دى، چي دا و يوه نوميز-اکوزاتيو ته مخامخ دى. په ابرګاتيو سيستم کي د ترانزتيو غونډلي نوم يا ښه يي نومويي په ابرګاتيو حالت کي دى، په داسي حال کي چي اينترانزيتيو غونډله کي ابسولتيوحالت غوره کوي يا لري.

په يوه  نوميناتيو- اکوزاتيو ژبه کي لکه الماني، د دې مخامخ  دواړه په همهغه حالت ( نوميز حالت، بېلګه: *Der Mann* geht – *Der Mann* sieht den Hund  پښتو يي : سړى ځي- سړى سپى ګوري ). په پورته غونډلو کي ګورو، چي سړى په کړوني حالت کي دى، چي پربېکړونى نه لري، خو په دويم حالت کي پربېکړونى لري يا د الماني په څېر اکوزاتيو نه دى. بل ډول يې ليکو: (په بخښنه، چي وهل په کي راولو او د سړي او سپي  پرځاى باندې نومځاينيوي وليکو). الماني:

Er geht- Er schlägt mich هغه ځي، هغه ما وهي. ،، هغه،، په دواړو حالتونو کي کړونى دى او دويمه غونډله  ياغونډلبرخه کي ،، ما ،، پربېکړونى دى. له دې څخه داسي پوهيږو، چي پښتو اکوزاتيو ژبه نه ده. د ابرګاتيو لپاره يي لاملونه همداسي دي.

دا کېدى شي د الماني اکوزاتيو غونډلو څخه هم څرګنده شي، چي د الماني اکوزاتيو حالتونه د پښتو په کومو حالتونه بدليږي.

لنډ بیا: ترانزتیو ( پرېکړونی نوموییونه یا ویونه، چې په یوه څه، څه کیږي، لکه خوړل): لکه په الماني کې schlagen په پښتو کې وهل. دا ویی په الماني کې د نومیناتیو اکوزاتیو حالت کې راځي، خو په پښتو کې د کړوني پرېکړوني حالت کې راځي، لکه

الماني:ِ Er schlägt mich

په پورته غونډله کې Er کړونی او mich اکوزاتیو دی، خو په پښتو کې :

هغه ما وهي. هغه کړونی، ما دلته پرېکړونی دي. دې ته دې پام وي، چې په پښتو کې ،، ما ،، دکړوني او په دې حالت کې د پرېکړوني دواړو لپاره راځي.

بیا دا په یاد راوړم چې د پښتو ژبلار سمه د پښتو ژبلار له لارې څخه ولیکو، هر څه په کې روښانه کیږي. ابرګاتیو د نومیناتیو/ اکوزاتیو ژبو سره په همدې بنسټ پرتله کیږي، چې دا روښانونه یې بې له دې، چې دا نوم راوړم روښانه دي.

په لاندې غونډلو کې هوسۍ د زورېدونې رول لري. له دې داسې پوهېږو، چې هوسۍ په دې غونډلو کې کړونی رول نه لري

„Der Vater schlägt Hosei.“ (Aktiv) .1

١. پلار هوسۍ وهي ( کړونی)

„Hosei wird vom Vater geschlagen.“ (Passiv) .2

٢ . هوسۍ د پلار له خوا څخه وهلکیږي. ( نه کړونی یا پرېکړونی).

په لومړۍ غونډله کې پلار کړونی دی او هوسۍ د الماني د اکوزاتیو حالت کې ده او د پښتو په نه کړوني – یا پرېکړوني حالت کې ده.

په دویمه غونډله کې پر هوسۍ باندې څه کړل کیږي، خو اوس هم د برېکړوني په حالت کې ده.

یادونه: د دې روښانونه لړ ستونځمنه ده، خو داسې به ولیکو، چې په لومړۍ غونډله کې یو کړونی شته، دا په دې پوهېدنه، چې دا اېرګاتیو غونډله ده او په دویمه کې کړونی نه شته. یا داسې:

سړي ملنګ وخوړ

پام، سپی خوري

په دویمه غونډله کې .....

به لاندې کې الماني غونډلي د اکوزاتیو مخځاینیوو سره دي.

Du kanst das durch mich bekommen

ته کړی شې دا د ما له لارې یا له خوا څخه ولاس ته راوړې.

دا د خاوندوالي حالت دی

Die Steine liegen entlang meines Hauses

تیږې د ما د کور پر اوږدو یا اوږدوالي باندې پرتې دي

dieses Buch ist für mich bestimm

دا کتاب د ما لپاره ټاکل شوی

Er ist gegen mich

هغه د ما مخامخ دی

Er geht ohne mich

هغه بې له ما څخه ځي.

Rund um mich

د ما پر شاوخوا باندې

یادونه: دا دې د پورته غوندلو پر بنسټ باندې هم په ګوته وي، چې اکوزاتیو د اکوزاتیو مخځانییو سره کېدی شي، د پښتو د خاوندوالي یا هم داتییو یا د پسېځاینیوو حالت غوره کړي.

Als Test zum Nachweis eines **Akkusativ**-Objekts dient im Deutschen die Frage Wen oder was? (**Beispiel**: Ich gebe dem Mann seinen Hut zurück. → Frage: Wen oder was gebe ich dem Mann zurück? → Antwort: den/seinen Hut). Aus diesem Grund wird er in der Schulgrammatik auch als Wen-Fall bezeichnet.

ګوری، چې دلته د پورته روښانه کول په پښتو ستونځمن دي، که دا پوښتنه ولرو، چې زه و دې سړي ته څوک یا څه شی بېرته ورکوم؟ ځواب، به دا یا د هغه خولی وي) او دا د ښوونځي ژبلار کې د څوک حالت هم بلل کیږي.

**Akkusativ**: Ich finde einen armen Mann genauso schlecht wie keinen Mann. Weitere Beispiele: Nominativ: Ein schlechtes Examen ist genauso schlecht wie ein abgebrochenes Studium. **Akkusativ**: Ich finde einen schlechten Arbeitsplatz genauso schlecht wie keinen Arbeitsplatz.

د اکوزاتیو د بېلګو ځنګه والی په پښتو:

د الماني اکو حالت په پښو کړونی حالت دی: زه یو بېوزله سړی همداسې بد میندم لکه نه کوم سړی( نه سړی، راته لږ ښه ونه برېښېږ).

بله بېلګه: د الماني نومیناتیو د پښتو کړونی حالت: یوه بده ازمويېنه همداسې بده ده لکه پرېښودی پوهنځي درس.

د الماني اکوزاتیو د پښتو کړونی حالت: زه یو خراب کارځای همداسې بد مینډم لکه نه کارځای.

Als **Postpositionen** bezeichnet man Wörter, die in ihrer Funktion Präpositionen entsprechen, aber *hinter* dem Wort stehen, das sie regieren (d. h., dem sie Kasus zuweisen):

دا د پورته الماني ژباړه ده: د پوستپوزېشن په څېر هغه وییونه پوهېږو، چې په خپله دنده د پرېپوزېشن دنده و سر ته رسوي، خو د وییونو و شا ته ځای نیسي، چې په هغې واک ولري ( د په دې پوهېدنه چې هغه مو و کازوس ته لاربښود کړي):

پښتو او الماني به یې وګورو، چې څه دي؟

- „einem Bericht *zufolge*“ (+ Dativ)
- له یوه خبر پسې
- „meiner Meinung *nach*“ (+ Dativ)
- د ما اند پسې یا ښه یې د ما له اند پسې.
- „den Fluss *entlang*“ (+ Akkusativ)
- د سیند پر اوږدو باندې
- „des Geldes *wegen*“ (+ Genitiv)
- د پیسو له امله

په پښتو کې لومړی د پسېځاینیوو حالت دی او دا نور د خاوندوالي حالتونه دي.

ما په دې خپلو اخرنیو لیکنو کې و ښووله یا ښهیط ومیندله، چې پښو یواځې پوستپوزېشنونهلري.

له پورته پښتو غونډلو څخه داسې برېښي، چې پښتو غونډلو کې یواځې پوستپوزېشنونه ځای شوي او لکه پوهېږو چې پښتو یواځې پوستپوزېشنونه لري.

په پای کې مو دا یوه اړینه لاس ته راوړنه ده چې: د ژبو ژبلاریزه څېړنه په دې پورې اړه نه لري، چې ګوندې دا ژبه په کومه ژبډله کې راځي. ژبلار

پخپله د همهغې ژبې په لار باید ولاړ وي. دا د ژبو ډلې چې پېژندل کيږي يا په ډلو وېشل کيږي، بنسټيز توپير يې په حالتونو کې دی، چې له همدې امله څخه د ژبو يوه ډله دومېناتيو/ اکوزاتيو او بله ډله يې نه اکوزاتيو ده يا اېرګاتيو ده، چې پښتو هم له همدې ډله څخه ده. ما چې اوس داسې لړ د اېرګاتيو له پېژند او داسې لړ د څېړنې لاندې نيولې، نو پوهېږم، چې دا وروستی څېړنه يا څېړنې مې په همهغو لارو ولاړې دي او کوم بدلون ته هم په کې اړتيا نه پېښيږي، نو په ژبه کې باید د ژبلارې کړنلار سمه او له ژبلاريزو لارو سره برابره وي.

يوه يادونه به دلته ولرو، چې ژبپوهنه هم يوه پراخه يا ستره پوهنه ده، چې په يو څو کتابونو کې هم نه پوره کيږي، چې يو توانمند مرکزي دنده لرونکي څه ونه لري، چې تر هغې پورې موږ هم ورته هم ناکړوني نه شو کښېناستلی.

# يوه غوره څرګندونه:

ما ډېر يا نږدې اولس کاله له دې څخه پيل وکړ، چې د پښتو يا په پښتو کې ناسمونونو باندې څه وليکم، چې دا کار مې وکړ، خو له دې سره سم د ژبلاريزو يو لړ ستونځو سره مخامخ شوم او اړ شوم، چې ژبلاره کې هم داسې لړ څه کار وکړم، چې په پای کې مې درې د پښتو ژبلار کتابونه او نور په ژبه اړوندې ليکنې وکړې، چې ټولې په ډېرو بربښنايي خپرونو کې خورې شوي، چې د هغو له ډلې څخه درنې خپرونې ټول افغان، تاند، دعوت خپرونې دي او د کتابونو په څېر دا ليکنې د کتابونو سترې بربښنايي زېرمتون په کتابتون.کوم کې خورې شوې، چې زه ورڅخه د زړه له کومې خوښنه کوم.

يو څه باید وکړم، چې روغ وم، خو نه پوهېږم چې څه؟ که رېښتيا ووايم د پښتو ليکنو سره هم سترې شوم ( اولس کاله هم ډېر وخت دی او هره ورځ مې ډېر ساعتونهکار کړی)، که څه هم چې کار په کښې ډېر دی.

که څوک مې د ليکنو سره سترې کړي وي، نو وما ته دې بخښنه وکړي.

که دما حالت څېړنو په هکله ليکنو ته پام وکړو او د نوميز/اکوزاتيو ژبو توپير د اېرګاتيو ژبو و توپير ته سره وګورو، نو همداسې کېدی شي، لکه څنګه چې پېژند کې شته.

کړونی حالت، چې د الماني د نوميناتيو سره ورته يا برابر دی او پرېکړونی حالت، چې د ترانزيتيو کړنوي سره وي، د پښتو کړونی حالت دی يا د پښتو د کړوني حالت ته ورته دی. د خاوندوالي حالت او د اتيو يا د پسېځاينييو حالتونه همداسې دي، لکه د الماني ګينيتيو او داتيو حالتونه.

يو بل غوره توپير د دواړو حالتونو په منځ کې نومځاينيوو هم دي، چې په الملني کې بڼه بدليږي، خو په پښتو کې دا تسيا بيا د اړونده مورفېمونو سره ډکيږي لکه، ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم او ،، له، تر،...،، د داتيو غونډلو سره اړوند مورفېمونه دی، چې د ،، ما ،، سره يوځای د ،، ما،، پوهېدنه د حالت سره سمه بدلوي.

د الماني جينيتيو: Mein Buch

پښتو د خاوندوالي حالت: د ما کتاب.

په پښتو کې ،، ما ،، د مورفېم ،، د ،، په مرسته او ورسره خپل د ،، ما ،، پوهېدنه و ;;دما ،، ته واړوله.

،، د ،، خاوندوالی مورفېم دی.

د الماني ژب داتيو:

Von mir, mit mir, bis mir, zu mir

د الماني اکوزاتيو: auf mich

دا د پښتو داتيو کيږي: پر ما باندې.

پسېځاينيوي يا داتيو حالت پر پښتو باندې انډول يې د پروکليتيکې يا د مخه تکيه اړ نومځاينيوو سره:

( را، در، ور)( څخه، سره، کره، پسې، کې، باندې، پورې، ته...)

که پورته ته وګور، نو وينو، چې دا کټ مټ يې په پښتو اړونه د المان داتيو ته ورته دي

د نومیزو نومځاینیوو سره:

له ما څخه(سره،کره، پسې) ، په هغه کې، پر تا باندې، تر هغه پورې, وتا ته ,......

په پورته کې ګورو، چې له ،، ما،، څخه دمخه له، په، پر ، و او ...... لرو. دا چې ،، ما، تا، هغه .... ،، لرو او دا د کړونو لپاره راځي، نو دا ،، ما ،، څنګه نه کړونی یا پرېکړونی، دا په دې پوېدنه، چې د پښتو داتیو، ا ګینیتیو کیږي، چې باید له کړوني حالت څخه را واوړي. دلته دا ،، له، پر، او دا پورته نور چې لرو، کومه پلواکه پو هېدنه نه لري او دا نورو وییونو ته د خپل ځن سره یوه بله پوهېدنه ورکوي، که دا ،،له ما،، = mir کیږي او همداسې دا نور هم. د ما تېرې لیکنې کتلی شئ.

دا چې ځو لیکنې غبرګې کوم او خوندیونې یې سره نږدې دي، دا سې له ګډوډي کېدی په دې کې راشي، خو هڅېږم، د ناسمونونو مخه نیول شوي وي.

د پام و: له هغو م ک ملګرو څخه، چې د ما په لیکنه کې ژبلاریزې یا نورې ستونځې او ناسمونوونه ورته برېښي، هیله ۀ د ما د پوهېدنې لپاره هم داسې روښانه په ګوته کړي.

که لیکو، چې داښه نه دی یا دا داسې ده دی، نو باید ور سره مل ولیکو، چې ولې، له یو بل سره د پوهېدنې له امله. ستاسو له ستونځو هم مننه

ډاکتر ماخان میږی شینواری

# افغان- - او دباندني پښتو پوهان

له پیل څخه ځو اړیینې یادونې:

١ - یو هیواد او ښه یې د یوه هیواد وګړي، چې وروسته پاتې وي، نو هغه په پوهنه او هره پوهنه کې هم وروسته پاتې وي. موږ ژبه هم ـلکه څنګه چې ده ـ د ژبلارې له لارې څخه ببرته داسې نه ده ورکړې لکه چې لارې ورته لرو.

۲ – موږ د خپلې ژبې هر اړخيزه ودې لپاره – لکه څنګه په نورو پوهنو کې – هم له نورو ژبو څخه ګټه اخستلو ته پوره اړ يو، خو په يو څه بايد ډاډه وو، چې موږ په خپله ژبه باندې له هغوي ( د نورو ژبو له پښتو پوهانو) څخه ښه پوهېږو، موږ چې له هغوي څخه زدکړه کوو او بايد ويې هم کړو، هغه د ژبلاريزو کلمو د پېژندونو دي، چې هغه بايد له هغو راواخلو او خپله ژبه ورسره، د خپلې ژبلارې په لار سنبال کړو.

موږ خپله ژبه هم بې له دباندنی ژبې مرستې څخه پرته و مخ ته نه شو بيولی، که څوک غواړي، په خپله ژبه باندې و بوهيږي.

اوس به و خپلې موخې ته راشو:

دېر واره افغان پښتوپوهان، چې خپلې ليکنې باوري کوي، نو د دباندنيو پښتوپوهانو ليکنې راوړي. ما د ډېرو د باندنيو پښتوپوهانو ليکنې په ويکيپيډيا او نورو د پښتو لپاره ليکنو کې وکتلې او دا پوره د ځوښنې ځای دی، چې ډېرې دي.

دوي دواړو ډلو ناسمونونه کړي او يا نه پوهيږي ( که نادرنښت وي، د دې ډېره بخښنه غواړم، دا ځکه ليکم، ژبپوهان دې ته راوهڅوم، چې د ما په دې هکله ليکنې رد کړي)، چې د ژبې جوړښت سم بېرته ورکړي يا سم ورکړي. زه هم نه شم ويلی، چې دا ناسمونونه چا له چا څخه رانيولي او په دې ناروغۍ موږ ټول اخته يو.

زه دلته يواځې هغه ناسمونونو ته د ګرانو لوستونکو پام رااړوم.

د موږ ستونځې چېرته دي؟

و به ګورو، چې د موږ ډېرې ستونځې په حالتونو کې دي، چې څو ليکنې په لرم او دابه دلته لنډ بيا د دوي د ليکنو په بنسټ وڅېړو. هغه د هوښيارو خبره، چې موټی د خروال نمونه ده.

ما داسې لږ څه د يوې پښتو ليکنې څخه را کاپي کړې، چې داسې څه ترې راواخلو بسيابه وکړي. دا غونډله به راوړو:

بېلګه: د ،، په،، سره ليکو چې ،، په لار،، يا په لاره: لاندې الماني او پښتو يې:

“auf dem Weg„په لار يا په لاره

بېلګه يې له پيل څخه راوړې، چې د ،،په لار،، لپاره ،،په لاره،، هم ليکلی شو

دا غونډله نو بايد د الماني غونډلې پر بنسټ باندې ليکل شوې وي، نو بسيا کوي، چې د ليکونکي له خوا يې د پښتو انډول وڅېړو.

د الماني غونډله کې و موږ ته د خبروauf دی، چې څه ترې پوهېږو.

په پورته ليکنه کې د الماني auf د پښتو په ،، په ،، زباړل شوی او همدا رنګه يې په لار يوه ه ورزياته کړې او لاره يې ورڅخه جوړه کړې، چې په دواړو کې د الماني auf پوهېدنه سمه نه ده ورکړ شوې. له بلې لور څخه ،، په،، له داتيو حالت سره راځي، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري، نو داسې ليکل يې ناسم دي.

د دې لپاره بېلګه: په کور کې. بل ډول دا غونډله نه راځي يا يې په بل ډول راوړل ناسم دي.

ناسمونونه دواړه ډلې کوي او دا غوره نه ده، چې څوک دا ناسمونونه کوي، خبره داده، چې موږ بايد يواځې په ځانونو باور پيدا کړو، نور د موږ لپاره ژبه نه شي ښه يا سمه کولی. وبخښی ژبه خو سمه ده، خو ژبه دسمې ژبلارې میندنه ده

دوی هم په خپله ژبه کې يو څه لري هغه ګوري او زه يې د ده په ژبه کې هغه اړيين څه ګورم، خو زه يې بياپه خپله ژبه له ده څخه ښه بايد وليکم او اوس يې له اولس کاله وروسته يا هلو ځلو ښه ليکم او بايد ښه يې وليکم، چې ور باندې يا پر دې باندې باوري يم.

دوی ليکي، چې دا ستونځې يواځې په څرکوم پوزېشن ،،په... کې،، او همداسې په له ... څخه، له ... سره، تر ... پورې، پر ... باندې او نورو کې دي. رېښتيا وايي، ستونځې رېښتيا همدلته دي، خو دوي لا تر اوسه پورې په دې نه دي پوه شوي، چې ولې او څنګه دا ستونځې دي؟

لنډ سمون: په پښتو کې موږ يوآځې پوستپوزېشنونه يا پسې ځاينيوي لرو، نو دا هيڅ ستونځې نه دي.

د داتیو حالت جوړښت

له هر څه څخه به لومړی دا ووایو، چې پښتو یواځې پوستپوزېشنونه یا پسبځاینیوي لري او بس.

نو و الماني لیکنو ته: دوي دباندني او افغان ژبپوهان ستونځې یا ځانګړتیاوې په ،، په ... کښې، ،، او همداسې ټولو نورو د داتیو حالت پسبځاینیوو او حالت مورفېمونو کې ګوري، دا د موږ ستونځې هم دي. دا ما په خپلو لیکنو کې تر هغې پورې، چې په دې حالت داتیو سم نه وم پوه شوی لیکل. نو اوس ګورو، چې دلته د رېکتوس ستونځې نه شته، ستونځې دا دي، چې موږ په ځانګړې توګه د ژبلار حالتونه نه دي پېژندلي او د ژبې هغه لویه برخه ستونځې مو دلته دي

بېلګې یې :.

زمونږ کره ځو. سم یې: له موږ کره ځو:

دا به لږ روښانه کړو ، چې ولې:

لومړی: ،، د ،، د خاوندوالي مورفېم دی، چې بیا باید ولیکل شي: د موږ کره ځو.

دویم: کره خو! څښتن نه لرې.

دریم: موږ په پښتو کې تکیه اړ نومځایونه لرو، چې له هغې سره یې تللی ( چې دا سې ویینه به سمه وي او که ؟ فکر به ورته وکړو). کور: کور مې په کابل کې دی، خو نه شو لیکلی، چې کره مې.

لیکلی شو: راکره، خو نه شو لیکلی را کور...

که دلته له هرکوم تکیه اړ نومځاینیوي سره سم راته، خو بیا د همهغې ډلې دی.

همداسې په لاندې کې: ته و یو چاته لیک استوې او نه یو چا ته. په دې هکله د ما دا اخرنی لیکنې کتلی شی.

دی عبدالرحمن ته لیک وراستوی. سم یې

دی وعبدالرحمن ته لیک وراستوی

-- له ،، د ،، سره د خاوندوالي یا جینیتیو جوړښت هغه وییونه، چې د خاوندوالي مورفیم ،، د ،، یې ومخ ته نه راځي. ،، د ،، پرېپوزېشن .. . دا ناسم دي. سمونونه به یې د الماني په برخه کې ولیکو ، دا به دلته ووایم، چې ،، د ،، پرېپوزېشن نه دی. ،، د ،، د خاوندوالي مورفیم دی. الماني، پښتو

د دې لپاره دوي لیکي:

Handbreit, Spanne ، لوېشت ( دلته د خاوندوالي څه نه شته)

د الماني اندول پر سمه پښتو باندې: د لوېشت سور، غزونه ( سور)

Reihe, Serie. لړ:

دا یواځې نومونه دي او بس. که یو څه په یوه لړ یا لړۍ پورې اړه ولري یا د لړ یا لړۍ وي، نو لیکو: د لړ ... یا د لړۍ....بېلګه: ګورۍ، چې ژباړه یې یو پر بل باندې ناسمه کړې. دلته د خاوندوالي څه نه شته، چې ،، د ،، ورسره راشي. دوي لیکي:

jene Gruppe von Wissenschaftlern

د دوی لخوا یې پوهېدنه: هغه ډله پوهان

له پورته پښتو څخه یې سمه الماني:

jene Gruppe der Wissenschaftger

له الماني څخه یې سمه پښتو: له پوهانو څخه هغه ډله یا هغه ډله له پوهانو څخه. دلته پښتو، الماني یو په بل ناسم ورکړل شوي.

Zu mir دا د الماني داتیو حالت دی

او پښتو پوهېدنه یې. ،،وما ته،، ده. دلته وما د mir په پوهېدنه او د zu پوهېدنه ،، ته ،، ده او په څټ.

ولې وما؟

ما کړوني دی، چې دلته نه شي راتللی، ځکه چې دا پښتو کې داتیو یا د پسېځاینیوو حالت دی، دا ،، و ،، د اړونده حالت یو مورفیم دی، چې پخپله

خپلواکه پوهېدنه نه لري، خو له ،، ما ،، سره یوځای د داتیو حالت نومځانیوی دی. دا په دې پوهېدنه، چې ،، وما،، = ،، mir ،،

پسې: ich habe dich geschlagen

پښتو انډول یې: ما ته ووهلې. دلته ،، ما ،، کړونی دی او ،، ته ،، پرېکړونی دی، چې د الماني اکوزاتیو د پښو په پرېکړوني واوښت. او په یاد دې وي، چې dich په الماني کې د اکوزاتیو نومځاینیوی دی.

دوی لیکي:einer von anderen; von einander

دوی د پښتو انډول لیکلې: ،، یو له بله،،.

په دې هکله مې لیکنه کړې، چې په پښتو کې له وییونو څخه تېرېدل ناسم دي، ،، یو له بله ،، ناسم دی او سم یې یو له بل څخه دی.

د الماني پښتو انډول: له یو بل څخه بېل شو. یو له بل څخه بېل شو.

د پښتو نومځاینیوي او حالتونه:د یو ګړو لپاره: زه، ما د کړوني او پرېکړوني ځانیز نومځاینیوي دي، خو په بدله بڼه کې او دا په لاندې ډول:

کړونیحالت یا ترانزیتیو حالت کې: زه وهم، ما وواه

کړوني حالت یا اینترانزتیو حالت کې: زه ځم، زه لاړم.

پرېکړونی - یا اینترانزتیو حالت کې: ما وهي، زه ووهلم

د ډېر ګړو لپاره په دواړو حالتونو کې همهغه موږ، تاسو، دوي..... دي.

اوس پرېکړه لږ ستونځمنه کیږي، چې ایا دا اوس دواړه په رېکتوس او اوبلیکوس کې یو یا یو ډول وګورو او که د یوګرو لپاره چې توپیر په کې شته سره بېل وګورو. دما اند خو دا ده، چې دا په یوګونو کړونو کې بېل دی، نو سره بېل دي.

په الماني ژبه کې د حالتونو سره نومځاینیوي بدلیږي، خو په پښتو کې نومځاینیوي نه بدلیږي. په پښتو کې د حالتونو او په خاوندوالي او داتیو حالت کې د اړونده حالت او د داتیو حالت کې د پسېځاینیوو اړونده مورفېمونه د ځانیز نومځای نیوي ،، ما ،، سره ور زیاتیږي او د دواړو

ګډه لیکنه د پسېځاینیوي اړوند پوهېدنه بدلوي، د الماني حالتنومځاینیو په څېړ.

په بخښنه داسې لږ دې دما نه، خو د لیکنو لږ ستاینه وي:د ما لیکنې یواځنۍ دي، ځکه په پښتو کې په دې هکله لیکنې نه شته او که ما سهوه کړي وي، خوښ به شم او راته و یې لیکي.

## ګرانو ژبپوهانو!

لیکوالانو او پښتو مینه والو!هر ځای کې چې لیکونکي د ژبې د ژبلاریزو ناسمونونو سره مخامخ کیږي، نو مسؤلیت یې د ژبپوهانو په غاړه دی، چې لږ تر لږ یې د لیکنو وروسته ورته سم کړي.

---

راځۍ، چې پښتو سمه زده کړواو ژبلاریزه سمه یا پر ژبلار باندې یې سمه ولیکو.

په بخښنه که داسې لږ ستوغ پیل مې کړی وي، خو موخه مې همدا راپارول دي.

موخه: یا باید و ما ته همداسې ستوغ ځواب راکړی، که ناسم څه مې ولیکل او یا – که سم وي – باید د سمون لپاره له هره اړخه کار واخلو او د ما د سمونونو ملاتړ وکړی.

-- د ژبې په ژبلار کې و سم لیکلو ته لار هوارول د ژبپوهانو دنده ده. تل یې باید دې ته پام وي، چې د ناسمون په حالت کې د ژبلار په متېه او د هغې پر مرسته باندې یې سمه ولیکي.

دا کار تر اوسه پورې نه دی شوی، که د ما لخوا به هم تاسو له ستونځو سره نه مخامخ کېدی. که په ژبه کې ناسمونونه ګوری، نو هغه څه یې چې ما راټول کړي او لیکلي، مخه نیول کېدی شوه. اوس باید د پښتو ژبلار سره سم و هر څه ته ژبپوهان پام وکړي.

پښتو – لکه نورې ژبې هم – ډېره ښه او روښانه ژبلار لري، خو په دې لار کې پوره کار نه دی شوی. زه بیا ټینګار کوم، چې په پښتو کې له دې لیکنې څخه پرته د حالتونو په هکله مې هم پوره میندنې کړې او ستاسو و مخ ته مې اېښوولې، چې د هغې په مرسته هم د داسې تېروتنو مخه نیول کېدی شي.

خبرې رالنډوم: دا ډېر کلونه کېږي، چې د دې یو څو غونډلو سره تاسو ته د سمون د وړاندیز په هکله په اخ و ډب کې یم، خو نه څوک د ناسم او نه د سم څه وايي. هیله ده، چې راځئ نور یې سم ولیکو، که دلایل مې ژبلاریز نه وو، هغه هم په کلکه رد کړئ، خوښ به شم او له جنجال څخه خپلواک. باور وکړئ، چې زه د دې ناسمونونو سره پوره زورېږم.

لولم:

لومړی: تر ټولو ستر( ښکلی، جګ او ...) فوټبالر.... مړ شو.

دویم: تر ډېره برېده .....

**دریم: وروسته تر هغه چې طالبانو په ...**

څلورم: تر ډیره د داعش فعالیتونه ترویجوي

له دې د مخه به یو څو- د دې موضوع اړوند -- اړیینې پېژندنې راوړم.

د پښتو حالتونو څلورم حالت باندې یو څو کرښې:

دا د ما په ډېرو لیکنو او اخرنې کتاب کې پوره روښانه شوي، خو

لنډ: په پښتو کې تر، له، په، پر، و... یو سېلبي مورفېمونه دي، چې خپلواکه پوهېدنه نه لري او هر یو یې د حالت اړونده له پسېځای نویو سره مل د نوموېونو د مخه راځي. د دې موخه دا ده، چې د نومځاینیوي- چې چې په پښتو کې تل په کړوني حالت کې دی- دنده بدله کړي

لکه: تر ما پورې، یا له ننګرار څخه تر کابل پورې. دا په دې پوهېدنه، چې تر پرته له داسې کارونې، چې ،، پورې،، ورسره نه وي، په بل ځای کې نه راځي او کارونه یې و ناسمونونو ته لار پرانیزی.

د نورو لپاره که غواړئ تاسو غونډلې ولیکي، خو لنډ یې د تکیه اړ نومځاینیوو سره:

(را، در، ور) ( سره،کره،پسې، څخه، کې، باندې، ته ....).

خویوییونه:

د خویوییونو **Das Adjektiv** لنډه روښانونه.

له لاتین څخه، پوهېدنه: ،،ورزیاتونه،،، دا ښه ورسره جوړیږي، ځکه چې د نومویيونو سره یو څه ورزیاتیږي. دا دي ،، ښکلی،، ، ،، خواشینی،، ، ،، رنګه،، ، ،، هوار،،.

دې وییونو ته په عربي کې صفت وایي او له دې امله پښتو پوهانو ستایيننوم بللی.دا خویوییونه هم بلل کیږي او یا ورسره وییونه.

ما په خپلو لیکنو کې دا خویوییونه بللي او دا یې د ما په اند ښه نومونه ده. خویوییونه په پښتو کې د نومویيونو ومخ ته لیکل کیږي. په پښتو کې خویوییونه بڼه نه بدلوي. په پښتو کې خوییونه جګیږي، خو په پښتو کې د پای ورزیتونې سره نه. په پښتو د دې زیاتونو یا جګېدنو لپاره ځانګړې ژبوییز توکي شته لکه، ډېر، خورا ډېر یا زښتډېر.

دا سړی جګ (ډېر جګ، خورا ډېر جګ، زښتډېر جګ) دی. د جګ پرځای باندې هر یو خویویی راتللی شي.

یا حالتونه، لکه لوند، وچ ...

په غونډلو کې: سږ کال خورا ډېر انګور شوي دي.

.... ډېر جګ سړی. زښتډېر ګړندی بایسکل ځغاستی.

د خویوییونو سره یو کس، یو حیوان یا شی کره پېژندل کیږي.

کېدی شي د یوه کس لپاره پرلپسې څو خویوییونه راشي. لکه: هغه سپین، جګ، سورکمیسی سړی، چې راروان دی.

اوس نو خپله موخه روښانه کوو.

و لومړي ته:

،، تر ټولو،، لاندې څه نه پوهېدل کیږي؟. که وپوښتو، چې له ،، تر ټولو،، څخه به څه وپوهېږم، خو زه څه ورڅخه نه پوهېږم.

په ،، تر ټول ،، ،، تر،، مورفېم دی، چې چې خپلواکه پوهېدنه د نومویيونو د مخه راځي چې پسې یو اړونده یا ټل همهغه پسېځاینیوی راځي او ،،ټول،، خوي دی. نو له دې امله ،، تر ټولو ،، د پوهېدنې څه نه لري. دا په دې پوهېدنه، چې له دې د پوهېدنې لپاره یو څه یا څوک راښی او اړونده پسېځاینیویی، چې یو څه و ښوولی شي. .... تر ټولو جګو خلکو پورې مې ځان ورساوه.

که دا د پرتله کونې له امله کارول کیږي، نو د پرتلې لپاره داسې لیکو: ... و نورو فوټبالرانو ته ستر(ښکلی، جګ او ... ) او یا له نورو فوټبالرانو څخه ستر(ښکلی، جګ او ... ) وو مړ شو.

ګومان مې دی دلته خبره د پرتله کونې نه ده، دلته خبره په ستر(ښکلی، جګ او ... ) کې ده، چې دا ستر(ښکلی، جګ او ... ) جګوي.

-- تر ټولو ډېر لیدل شوی. دا هم موخه ور نه دی او ناسم دی. دا به وي: ډېر خورا ډېر، زښتډېر لیدل شوی سړی.

-- د ګاناډا ځوان د نړۍ تر ټولو لوړ سړی ګڼل شوی. دا غونډله هم څه نه وایي.

دا به داسې سمه ولیکو: د ګانا دا ځوان په نړۍ کې ډېر - خورا ډېر – یا زښتډېر لوړ سړی ګڼل شوی. یا د کاناډا دا ځوان د ټولې نړۍ و جګو ځوانانو ته ډېر – خورا - ، زښتډېر جګ سړی دی.

دا ستر(ښکلی، جګ او ... ) خوي ویونه دي، چې په پښتو کې یې ښه نه بدلیږي او د دې خویونو د جګېدنې لپاره ډېر، خورا ډېر او زښت ډېر لرو. دا به نو داسې ولیکو: ډېر( خورا ډېر ، زښتډېر) ستر(ښکلی، جګ او ... ) فوټبالر مړ شو.

دا ګوره کوټلې او ډېره ساده لیکنه ده.

و دویم ته: تر ډېره بریده...ډېر برید یا ډېره پوله نه شته، نو له دې امله څه ورڅخه نه پوهېدل کیږي. ډېر د ډېرګنو لپاره راځي او پوله یا برید یوګڼی دی، چې له دې امله ناسم دی. سم یې : تر ډېرو برېدونو پورې یا له برید څخه ډېر یا اخوا، تر لرې برېده پورې یا تر لویه بریده پورې او داسې نور.

بیا دواړه لنډ: ،، تر ټولو ستر،، نه شته او همداسې ،،تر ډېره بریده،، هم نه شته.

او یا هم تر ډېرې کچې، یا د کابل په کچه.

کچه د معیار یا سویې پر ځای باندې کارول ناسم دي.

،،تر اغیزې لاندې،، دلته هم ،، تر ،، ځای نه لري. دا ،، لاندې،، باید د یو څه لاندې وي او دلته به دا ،،لاندې،، دلته ،،د اغیز لاندې،، دی.

دا هم: ،، د بیجینګ او ریاض ترمنځ،، . دلته هم ،، تر ،، ځای نه لري. سم یې: د بیجینګ او ریاض په منځ کې.

-- او تمرینونه تر سره کوي. دلته هم ،، تر ،، څه نه دي ورککړي او سم یې: او تمرینونه و سر ته ورسول یا تمرینونه و پای ته ورسول.

- د نورو علومو تر شعاعو لاندي. سم يې: د نورو علومو د شعاع لاندې.

- د هغو ژبو تر تاثير لاندي راغلي. دلته هم د ،، تر ،، پر ځاى باندې نه راځي

- چي تر بل هر چا زيات ژبپوهنيز اثار يې ليکلي دي.

سم يې: چې و بل هر چا ته يې زيات ژبپوهنيز .....

موږ بايد وپوهېږو، چې کړنه، خويوييونه، پسبځاينيوي او نور ژبني توکي کوم دي او بايد ويې پېژنو، چې څنګه سمکارول کيږي.

راځئ په ګډه وهڅېږو، چې پښتو مو د ژبلار په څلورديولي کې راونغاړو، نو بيا د ناسمونو مخه نيول کېدى شي.

د پښتو ژبې ستونځې- د ما په اند- ټولې په حالتونو يا د پښتو څلورم حالت او همداسې په خويوييونو کې دي، چې ما دا په خپل اخرني کتاب کې روښانه کړي. که څوک د خبرو څه لري، کړى شو د برېښنا پتې له لارې څخه هم سره په اړيکو کې شو.

هيله ده، چې په دې هکله بې پروا پاتې نه شى.

دا پلمه مه نيسئ، چې لوستې ريښه مې پښتو ژبه نه ده.

ما په دې لار کې ډېر کار کړى او نږدې تر لسو کتابونو پورې مې په دې هکله ليکلي.

د تاسو د ټولو له مرستې څخه ډېره مننه او ستړي مه شئ

Smakhan1946@gmail.com

د ډاکټر ماخان میرې شینواري کتابونو ته کتنه

د ډاکټر ماخان شینواري پوهنیز کارونه، ځانګړي دي، دا په دې مانا چې د نورو پښتو لیکنو سره د پښتو ژبې له مخې پوره توپیر لري او سوچې بوچې نوې دي. په لاندې ډول:

۱ – ډاکټر شینواري نږدې څلوېښت کتابونه د شمېرپوهنې ریښه کې په پښتو کړې، دا په دې مانا، چې د عربي ویونو په ځای یا یې نوره هم ښه د مسلکي نومونو انډول پښتو ویونه لیکلي.( دا انډول نومونه په پښتو کې شته، جوړ شوي نه دي)

۲ – په درې کتابونو کې یې فزیک هم په پښتو لیکلی، دا په دې مانا، چې پوهنیز او مسلکي ویونه په پښتو دي، چې دا هم د پښتو ژبې له پاره لومړی ځل دی.

۳ – دوه کتابونه د ژبې په هکله، چې هلته هم د نورو لیکوالانو د لیکنو د سمون سره سر او کار لری ، چې نومورې په کې تراوسه ځانله دی، لکه په دې نورو لیکنو کې هم. ملامتي به د نومړي وي، خو وایي، چې کړنې یې د ژبلار سره سمې او سم اندیزې دي.

که ژبسمون، چې بیا هم ډېر غزېدلی او چاپ ته چمتو دی، هغه ویونه د څېل شوي، چې ناسم ژبې ته را ننباسل شوي.

۴-دوه کتابونه ۴ ۱ – پښتو ژبلار د ښوونځې لپاره به په لنډ وخت کې خوره او

۴ ۲ – د ژبې په چوپړ کې به هم لنډو ورځو کې ستاسو لوستلو ته وړاندې شي.

زما زیاتې لیکنې له پخوا په ټول افغان او اوس همداسې هغه زیات یې د تاند په خپرونه او د دعوت خپرونه کې خواره شوي او نور هم دا کار پسې روان دي.

او کتابونه په کتابتون.کوم کې خوریږي، چې هلته یې بیا د کتاب په بڼه لوستلی شی.

۳۴ – دا اوس پنځه او یا ښیږ کتابونه نور د ژبې اړوند ، یو د سیاست، او یو د غورهخبرو کتابونه خپرونې ته چمو دي. ( د اوکتوبر اوم ۲۰۲۲)

## د ډاکتر ماخام مېرې شینواري لیکنې او ژباړې

د ډاکتر ماخان شینواري چاپ او ناچاپ لیکنې، چې هغه زیاته برخه یې له ketabton.com څخه خواره شوې:

:(Vienna (Austria 1988

لومړی:

Kaiser , M. Shinwari : Aproximation compact .H.K
Page ; general algebra 6 algebra : contributions to topological
117 – 122

:(Vienna (Austria 1987

دویم: Interpolation und Aproximation durch Polynime in Universalen Algebren . Diss . Uni. Wien

لاندې د شمیرپوهنې پښتوټول کتابونه په المان کې د ،، افغانستان کلتوري ودې ټولنه،،له خوا چاپ شوي دي
:(Bonn (Germany 2000

دریم: د شمیرپوهنې ستر کتاب : د شمیرپوهنې برسیره د انجنري، فزیک او اقتصاد لپاره ، همداسې د ښوونکو او زده کوونکو لپاره ( دا کتاب په ۹۰۰ مخونو کې چاپ او دا نوې لیکنه به یې ځنو ځایونو غزېدلې او ځنې ځایونه ترې لرې شوي دي)
:(Bonn (Germany 2003

څلورم: ځمککچپوهنه( هندسه) ، په سلو، زرو کې شمیرنه، د ګټې – او کټې د کټې شمیرنه ، د اختمالوالي شمېرنه کتاب د ښوونځي ټولې اړتیاوې پوره کوي
:(Bonn (Germany 2003

پنځم: الجبرونه ( د الجبر بنسټونه دي) ( ketabton:com ته پورته شوی)
:(Bonn (Germany 2003

شپږم: د شمیرپوهنې انګرېزي – پښتو ډکشنري.( ketabton:com ته پورته شوی)
:(Bonn (Germany 2003

اووم: د شمیرپوهنې الماني - پښتو- او پښتو الماني ډکشنري ( ketabton:com ته پورته شوی)

*dictionary German/ Pashto and Mathematical Pashto/German*
:(Bonn (Germany 2003

اتم: دفرنځیال برابرون ( دا کتاب په دې ځانګه کې یو پیل دی، ساده لیکل شوی) ( ketabton:com ته پورته شوی)

*equation Translation; An Introduction Differential*
Germany): 2003) Bonn

نهم: د شمیر پوهنې فرمولونو ټولګه
*Formulas Mathematical*
:(Bonn (Germany 2003

لسم: شمیرپوهنه له عربي په پښتو

:(Bonn (Germany 1997

یوولسم: د افغانستان په هکله سپینې خبرې: په المان کې

،،د افغانستان روغې او بيا ابادولو ټولنه،، له خو

يادونه: له ۲۰۰۰ کال دمخه ډاکتر ماخان شينواري د ،،د افغانستان روغې او بيا ابادولو ټولنه،، له خوا درې سياسي مجلې هم را وستلې.

ژباړې او نورې ليکنې:

: *(Brinkmann. (From Brinkmann.du.de .Prof*

لاندې د برينکمن ليکنې چې له پرينکمن ن ج څخه ژباړل شوي دي. دا کتابونه د ښوونځي له پاره او همداسې د کانکور ازموينې له پاره ګټور دي.

دولسم - شميرپوهنه د ښوونځي لپاره لومړی ټوک ( ketabton:com ته پورته شوی)

ديارلسم – شميرپوهنه د ښوونځي لپاره دويم ټوک( ketabton:com ته پورته شوی)

څوارلسم – شميرپوهنه د ښوونځي لپاره دريم ټوک( ketabton:com ته پورته شوی)

پنځلسم - د احتمالوالي شميرنه د ښوونځي لپاره( ketabton:com ته پورته شوی)

شپاړسم – احصايه يا ستاتيستيک دښوونځي لپاره( ketabton:com ته پورته شوی)

لاندې کتابونه د شتوتګارت د پوهنتون د استادانو د لکچرونو څخه چې د شتوتګارت پوهنتون ن ج څخه خپاره شوي را ژباړل شوي.

اولسم – انالیزی ۱ ( ketabton:com ته پورته شوی)

اتلسم – انالیزې ۲( ketabton:com ته پورته شوی)

نولسم – کرښيز الجبر ( ketabton:com ته پورته شوی)

شلم - د شميرپوهنې بنسټونه ( ketabton:com ته پورته شوی)

يوېشتم - د فرمولونو ټولګه( ketabton:com ته پورته شوی)

دوه ويشتم – فنکشنل اناليز( ketabton:com ته پورته شوی)

درويشتم – وکتور شميرنه ( ketabton:com ته پورته شوی)

نورې ژباړې

څلرويشتم – له www/grundstudium.info/linearealgebra.
څخه:کرښيز الجبر ( ketabton:com ته پورته شوی)

پنځويشتم – Georg Gutenbrunner ګڼونپوهنه يا د اعدادو تيوري(
ketabton:com ته پورته شوی)

زما ليکنې
Bonn (Germany):

شپږويشتم - د شميرپوهنې ستر کتاب دويم چاپ لومړۍبرخه: د پوره تغيراتو سره : دا کتاب د شميرپوهنې برخې برسيره د انجنري، فزيک او اقتصاد لپاره ، همداسې د ښوونکو او زدهکوونکو لپاره پوره ګټور دی. په کتاب کې د اړتيا سره زياتونه او کونه راغلې ( ketabton:com ته پورته شوی)

اوه ويشتم- د شميرپوهنې ستر کتاب دويمه برخه ( ketabton:com ته پورته شوی)

اته ويشتم - ځمککچپوهنه ( هندسه) دويم چاپ د پوره تغيراتو سره (
ketabton:com ته پورته شوی)

نه ویشتم – الجبر بنستونه دویم چاپ له تغیراتو سره ( ketabton:com ته پورته شوی)

دېرشم - ډېرۍ پوهنه یا سټ تیوري ( ketabton:com ته پورته شوی)

یودېرشم – د شمیرپوهنې سم اند ( منطق ریاضي) ( ketabton:com ته پورته شوی)

دوه دېرشم - د یو څو شمیرپوهانو ژوندلیک( ketabton:com ته پورته شوی)

دریدېرشم – د شمیر پوهنې ګډې وډې لیکنې

څلوردېرشم- داهم ژباړه ده، خو لیکونکی یې متآسفانه راڅخه نابلد شوی: د مشتق او انتیګرال شمیرنو ته تمرینونه او اوبیونې یا حلونه یې( ketabton:com ته پورته شوی)

پنځه دېرشم – د شمیرپوهنې انګریزې پښتو او عربي + درې ډکشنري

شپږدېرشم – د شمیرپوهنې پښتو انګرېزي ډکشنري( ketabton:com ته پورته شوی)

اوه دېرشم – د شمیرپوهنې پښتو ډکشنري د شمیرپوهنیزو وییونو په پښتو روښانه ونه( ketabton:com ته پورته شوی)

اته دېرشم - د زړه له کومې( دا هغه لیکنې دي، چې ځنې یې په نړیول جالونو کې خپرې شوي دي.)

نهه دېرشم – د افغانستان په هکله سپینې خبرې، چې وبه غزیږي.

څلوېښتم– د شتوتکارت پوهنتون لکچرنوټونو څخه ، چې د شتوتګارت پوهنتون ن ج څخه خپریږي: د ګروپونو تیوري( ketabton:com ته پورته شوی)

- د ښوونځي لپاره فزیک د برینکمن لیکنه

له پنځم ټولګي څخه تر اووم ټولګي پورې ژباړل شوی ( دا چې زما دویم مسلک فزیک دی، دا لیکنې ژباړم. دا هم د دې لیکوال یوه ډېره ښه لیکنه ده، چې -د شمیرپوهنې په څېر- دلته هم زیات تمرینونه د حل یا اوبیونې سره په کې راغلي او ماته زیات ګټور برېښي) او دالاندې د برینکن څخه راژباړلي

یوځلوېشتم - فزیک لومړۍبرخه ( ketabton:com ته پورته شوی)

دوه ځلوېښتم – فزیک دویمه برخه. برېښنا پوهنه. همدا کتاب. ( ketabton:com ته پورته شوی)

درېځلوېښتم – د پوهنې وزارت له خوا چاپ د ښوونځي شمیرپوهنې کتابونو ته کتنه. دې کتاب کې د دښوونځي کتابونو د هر کتاب یوې برخې ناسمونونو ته ګوته نیول شوې او ناسمونونه بیا سم شوي دي.(کتابتون.کوم ته پورته شوی)

څلورځلوېښتم – د فزیک کوچنی ویونو دکشنري(کتابتونړ.کوم ته پورته شوی)

پنځه ځلوېشتم – پرېپوزېشن یا اړیکویونه.( ketabton.com ته پورته شوی)

شپږځلوېشتم = ژبسمون( پښتو کې ناسم راننوتي ویونه، چې سم شوي دي) ( ketabton.com ته پورته شوی)

اوه ځلوېښتم – پښتو ژبلار یا ګرامر ۲۰۲۰ همدا کتاب ( ketabton.com ته پورته شوی)

اته ځلوېشتم – ژبسمون ( که غواړۍ دویم غزېدلې لیکنه) : له پخوانی لیکنې څخه نوی شوی او پوره غزېدلی ۲۰۲۰.( ketabton.com ته پورته شوی)

تازه لیکلي خو تراوسه کتابتون ته نه دي پورته شوي او دا د ځانله لیکنو په توګه له درې کاله را په دیخوا د تاند او په دا ورسته کې د دعوت او همداسې د نورو د ج څخه خوریږ.ي او خواره شوي دي. په دې کتاب کې د پښتو ناسم

ننوتي ویونه څېړل شوي ناسمونونو ته ګوته نیول شوي او په دلایلو روښانه شوي، چې ژبمینوالو لهپارهیې لوسته او ګوتنیونه اړیینه ده.

نهه څلوېښتم – داسې څه له فلسفې ۲۰۲۰( ketabton.com ته پورته شوی)

پنځوسم – ژبې مري او نورې لیکنې ۲۰۲۰ ( کتابتون ته پورته شوی)

دا اوس خورنې ته چمتو: هیله ده چې کتابتون.کوم ( ketabton.com ته پورته شوی) کې یې وکتلی شئ

یوپنځوسم- پښتو ژبلار د ښوونځي لپاره. همدا کتاب

دوه پنځوسم- هر څه د ژبې په چوپړ کې.

درېپنځوسم- هر څه د ژبې په چوپړ کې.

څلورېپنځوسم- د نړۍ هوښیارتیاوې.

پنځه پنځوسم – د جبران خلیل غوره خبرې .

شپږپنځوسم- ټولیز سم اند همدا کتاب .

اوه پنسوسم: غوره ویناوې. دویمه برخه.(همدا).

اته پنځوسم: د حالتونو څېړنپای ( همدا کتاب)

نهه پنځوسم: حالتونه. د حالتونو غزولې او د ښوونځي لپاره چمتو شوې برخه. (همدا کتاب)

# د ډاکتر ماخان میرې شینواري ژوند ته یوه لنډه کتنه

نوم: ماخان ( په لومړي ځل یې نوم ،،میرې،، وو. د رحمابابا لیسه کې نوملیکلو وروسته په ماخان باندې بدل شو)

د کورنۍ نوم : شینواری

د پلار نوم: اروابناد نورالرحمان

د مور نوم: اروابناده پستو  بي بي

د نیکه نوم: اروابناد حسن خان

د نیا نوم: اروابناده صبره بي بي

دزیږېدو کال: ډاکتر ماخان شینواری د ۱۹۴۶ ز ک د سپتمبر په ۱۵ نېټه زیږېدلی دۍ ( دا خو هغه رسمي ز ک دۍ. سمه نیټه یې ۱۳۲۲ او ۱۳۲۰ ش ه کلونو منځ کې باید وي، خو تره مې وایي ۱۳۲۰ ه ک دۍ)

د زیږېدو ځای: ننګرهار د شینوارو د هسکې مېنې ولسولي په مورګې کلي کې زیږېدلی.

د مورګۍ غارخلي کلي کې د لمنځتون استادانو څخه له قرانکریم تر پنجکتاب، خلاصه، مونیه، ګلستان پورې، چې دا مو بیا په ښوونځې هم لوستل، لوستلي، خو بې له دې چې پوره پرې پوه شي.

کلیوالي ښونځي: له ۱۹۵۱ تر ۱۹۵۴ پورې د هسکې مېنې مورګۍ لومړني ښونځي، چې دی یې هم د لومړنیو زدکوونکو له ډلې څخه وو.

د رحمان بابا لېسه : له لومړي او بیا له دریم تر ۱۲ ټولګې پورې له ۱۹۵۴ تر ۱۹۶۵ پورې.

دی د رحمان بابا لیسه کې له دریم تر ۱۲ ټولګي پورې د خپل ټولګي اولنمره پاتې شوی.

۱۹۶۶ ز ک د کابل پوهنتون دطب پوهنځي په همدې کال کې

۱۹۶۶ ز ک د سپتمبر میاشت د ښوونځي برس له لارې اتریش ویانا ته تګ.

۱۹۶۶ تر ۱۹۶۷ کال پورې ویانا اړوند مودلینګ کې د الماني یا ښه یې اتریشي ژبې او د دیارلسم ټولګي لوست.

اکتوبر ۱۹۶۷ د وینا پوهنتون کې نوملیکنه، چې د پوره زیاتو ستونځو سره په ۱۹۸۹ ز ک کال کې د ډاکترۍ په اخستلو بریالی شو( دا نو پوره ستونځې دي).

له۱۹۸۷ ز ک تر ۱۹۸۸ ز ک د فبروري تر پای د دباندنیو چارو وزارت کې مامور.

د ۱۹۸۸ دمارچ لومړۍ نېټې څخه تر ۱۹۹۲ جون پورې په بون جرمني کې د افغانستان جمهوریت سفارت کې د سفیر دندې د شارژد افیر( صفر نه وو) د نوم لاندې.

له هغې وروسته په جرمني کې سیاسي پناه.

د ۲۰۰۴ ز ک جون څخه د ۲۰۰۵ ز ک جنوري پورې د کابل علومو اکادمي د پیداښتي پوهنو څانګه کې دنده.

له ۲۰۰۸ ز ک د مارچ څخه د ۲۰۰۹ زک دسمبر پورې د ریاضي څانګه کې د پوهنې وزارت درسي نصاب کې دنده.

ماخان شینواري بې کاره نه دی او لږ تر لږه له ۹۷ ۱۹ څخه همدا د کتابونو لیکلو او د ژباړې دنده په غاړه اخستې، چې خپل فکر تر شونې پولې پورې تازه وساتي.

ماخان میرې په ۱۹۷۲ کې له لرې د میرمن ښاپیرۍ سره واده شوی، چې د واده خبر ورته اتریش ویانا ته ورغلی.

ده د میرمن ښاپیرۍ سره په ۱۹۶۳ ز ک کې کوزده کړې وه.

دوي ته لوي څښتن په اتریش ویانا کې د مای په شلم ۱۹۷۹ ز ک دوه بچیان وبخښل، چې څانګه او اباسین نومیږي. څانګه په المان کې د پوهنتون علمې همکاره وه او د حقوقو ډاکتره ده او اباسین ملي اقتصاد او ټولنیزه سایکولوژي لوستلې.

ډاکتر شینواري ته د پوهنیزو هلو ځلو له امله ستاینلیکونه:

۱ – د افغانستان کلتوري ودې ټولنه. جرمني

۲ – د افغانستان کلتوري ټولنه کولن میشنیش. جرمني